# دیوانِ

# نجیب









## دیباچه

د

سیّد خیال بخاری



پښتو اکیډیمی د پېښور یونیورسټی



د پښتو اکیډیمۍ د مطبوعاتو سلسله نمبر ۸۴




اول ځل چاپ ______ ۱۹۷۲ء

تعداد ______ یوزر (۱۰۰۰)

کتابت ______ سید خضرت شاه

قیمت ______ شپږ روپئ =/۶



طابع

عزیز خان په شاهین برقي پریس پېښور کښې چاپ کړو



ناشر

سید خیال بخاري ډائرکټر د پښتو اکیډیمۍ نه خور کړو

# دیباچه

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

نَحْمَدُهٗ وَ نُصَلِّيْ عَلٰى رَسُوْلِهِ الْكَرِيْمِ

د پښتو د کومو پخوانو شاعرانو دیوانونه چه تر اوسه چاپ شوي دي په دیکښې اکثر داسې دي چه که د هغوئ نوم ږدو نو خو ځینې) راته معلوم دي. نو دیوان ئې نه دی. او چه د کومو دیوان راپیدا شوې نو د هغوئ د ژوند حالات په تپو تیرو کښې پراته دي ځکه د هغوئ د پاره د "درک نه موشاعرانو" یا تیر هیر شاعرانو" الفاظ استعمال کړې شول او د هریو شاعر د دیوان په سر کښې د هغوئ د حالاتو د نه پیدا کیدو په حقله افسوس ښکاره کړې شوې او د زړه تسله مو په دې اوکړه چه دا یوازې پښتانه شاعران نه دي بلکه د دنیا نورو ژبو او قاموسونو سره هم د زمانې هم دغه سلوک دې! او په مثال کښې خواجه حافظ او شکسپیر لوموړنه واخلو. نن چه کوم شاعر دیوان مونږ تا سو ته وړاندې کوو د هغه په حقله هم دغه خبره وئیل غواړی چه دیوان ئې د وړکې نه راپیدا شو او د ژوند حالات ئې هم د ماضي په تیرو کښې ورک دي - که مونږ په دې لړ کښې هم دغه خبره او نیکو نو د حقیقت به یوځل بیا په ګوته کول وي - او ځکه ئې هم لړی - خو دا ځل زما مخې ته یوه بله خبره راغله. هغه دا چه خدائ پاک د

چاخوارې په ادبونه دړې. د ښو لو شاعرانو چه کوم کوم دیوانونه اونور کتابونه چه را پیدا شوي دي اود کوم کوم ځائے نه چه را پیدا شوي دي اوپه څه طریقه تر اوسه پورے د زمانے د ناقدرۍ د لاسونو نه محفوظ پاتے شوي دي. دا هم څه دده خبرے ثبوت دے چه د چاخوارۍ نوے نه ځي.

د نجیب دیوان، کوم چه مونږ تاسو ته وړاندے کوو، هم لکه د نورو ډیرو قیمتي مرغلرو خدائے پاک محفوظ ساتلے دے. اودد ے دیوان د محفوظ ساتلو کارنے هم لکه د نورو ډیرو قیمتي قیمتي کتابونو چه د یورپ په لویو لویو ښکلو کتب خانو کښې محفوظ ساتلي دي. یو پیرنګي مستشرق میجر راورټي ته سپارلے وو. د میجر راورټي د نوم نه تقریباً هرهغه پښتون واقف دے چه د پښتو ادب تاریخ سره څه لږ شان تړون... لري. راورټي د نورو ژبو نه علاوه د پښتو ژبے یو ښه عالم وو. هغه سربیره پښتو زده کړے وه اود بیائے د پښتو ژبے (د هغے وخت اود حالاتو مطابق) ښکلے لغات اود ګرامر کتاب لیکلے وو او د پښتو ډیر نادر نادر کتابونه (قلمي نسخې) جمع کړي وو. او چه خپله ئے ترینه استفاده وکړه لوئکه زمونږ په شان د بے قدره خلقو چینجو خوراک کیدو دپاره ئے خوندي نه کړل بلکه په ډیر قدر ئے د ملک لویو کتب خانو له ورکړل. دا دیوان هم هغه پیدا کړے وو اود لندن د مشهورے برطانوي عجائب خانے (برټش میوزیم) لوئے کتب خانے ته تحفه کړے وو. ددغے نسخې یو نقل د مائکرو فلم په شکل کښې پښتو اکیډمي ددغے کتب خانے نه راغوښتے وو ددے نسخې په سر کښې میجر راورټي په خپل قلم په انګریزئ کښې یو نوټ لیکلے دے چه،

«دا د نجیب دیوان دے چه یو ښے شاعر دے یا به کتاب دے را ماله په

ډېر زيات کړاؤ اؤ کوشش د سوات د پوهې د خواؤ شا علاقې نه، چه
د پېښنور نه قطب په لورې پروت ده، په لاس راغلې دې. خو اوس وخت
تېر دې اؤ زهٔ دا په خپل کتاب "گلشن روه" کښې نهٔ شم شاملولې. ددې
مصنف راتريو سفرې افغان ښکارې خوزهٔ د هغهٔ په حقله څهٔ يقيني
معلومات نهٔ لرم "

دا نوټ هغهٔ په دسمبر ۱۸۵۹ء کښې ليکلې وو. ددې نه موږ ددوه قياسه جنګولې
شو. يو دا چه دې په دغه وخت کښې ميجر شوې نهٔ وو بلکه کپتان وو اؤ دويم دا
چه په دغه وخت کښې د هغهٔ مشهور کتاب "گلشن روه" په چاپخانه کښې وو
يعنې لا چاپ شوې نهٔ وو خو د چاپ کار ئې تقريباً سرته رسېدلې وو اؤ ځکه د
نجيب د ديوان څهٔ برخه راورټي په دغه کتاب کښې شامله نهٔ کړې شوه

راورټي د خپل دغه مشهور کتاب "گلشن روه" سريزه هم په
دسمبر ۱۸۵۹ء کښې ليکلې ده خو کتاب بيا په لندن کښې په ۱۸۶۰ء کښې
ترچاپه اورسيد. ښائي چه په دې موقعه موږ يو څو ټکي د
"گلشن روه" په حقله هم وليکو. په دې کتاب کښې راورټي د پښتنو
د مشهورو شاعرانو د کلام انتخاب ئې کړې وو اؤ ورسره ئې په انګرېزي
کښې ترجمه کړې وه. غالباً دا هغه ترجمه وه چه علامه اقبالؒ په لندن
کښې د خپلې استوګنې په وخت کښې لوستلې وه اؤ د خوشحال خان خټک
د حريت پرستۍ، مړانې، غيرت، اؤ د تورې نه ډکو اشعارو نه دومره
متاثره شو چه دغه اثر يوازې دا نه چه شاعرۍ کښې ئې برخيره دې

بلکه هغه د دے «مردِ کوهستانی» نه ډیر زیات اُمیدونه هم والبسته کړل.
یورپ سره د پښتون او پښتونولئ پیژندګلو دغې مستشرقینو کړے ده چه
د پروفیسر ډورن او راورټي نومونه ئے سرِ فهرست دی. داد نن نه سل
شپږ شپږ کاله پخوانئ خبره ده. زمونږ خو خپله دا حال وو چه د نن نه یو
ځلویښت پنځوس کاله پخوا پخپله هم د خپلې ژبې د دغو ورځو لوړو شاعرانو
د کلام او تصنیفاتو څخه بےخبره وو. په دغو ورځو کښې زما یاد شی چه یو
ځلی (زه پخپله په دغو ورځو کښې وړوکے وم) د پښتو آنرز د امتحان د
پاره د خوشحال خان خټک «دیوان» پیے نه، بلکه یوځو غزلو پیے، سره ډیرے
بوډیلے ګوزیدۀ او نهٔ ئے موندلے. او بیا د پاکستان د جوړیدو په وخت
کښې عزتمند خلیق صاحب په تهول قصه خوانه کښې د کتابونو د هریو ددکان د
لټون نه پس د پښتو د یو متین دا خواهش پوره نهٔ کړے شو چه د سلو
روپو (ډهرګجب) کتابونه ورله برابر کړی! او اوس د خدائ فضل دے چه
د قام خپلې ژبې ته مخه شوه نو په شلګونو نه، په سوونو کتابونه ولیکلے او
چاپ کړے شول. په دے لړ کښې ډیرے پخوانئ مرغلرے هم بیا موندے شوے
او توچاپ اُو ریسید ے. چه پکښې معزالله خان، مصری خان، خواجه محمد بنگش، میان
نعیم او د کو یمداد دیوانونه، د ګل صنوبر، آدم دُرخانئ او د لی شهئ ادبی
او معیاری قصے او په تیره تیره «تیوهیر شاعران»، «خیرالبیان» او تواریخ
حافظ رحمت خانی خاص طور سره د ذکر وړ دی، چه اکیډیمئ چاپ کړل.
خهٔ دیوانونه خو همتناک زلمی همیشی خلیل او خهٔ نورو ادارو راپیدا

کړل اوُ د پښتو علمی اوُ ادبي پنګه ئې پرے ودنه کړه.

د نجیب د دیوان په لړکښې د پښتو ژبې یوُ ډیر لوئے محسن نوم هم مُخ ته راځی۔ اوُ هغه د ځوکنو د میاں عمرؒ صاحب مشر زوئے صاحبزاده محمدی دے (رحمهم الله) صاحبزاده محمدی که یوُ خوانته یوُ لوئے عالم وو اوُ په یوُ ډیر لوئے مسند ناست وو خو بل خوا یو ډیر لوئے شاعر هم وو. اوُ صرف شاعر نه بلکه د علم اوُ اَدب اوُ د شعر یوُ ډیر لوئے محسن هم۔ د بدامنئ، لاقانونیت اوُ د خطرو نه ډغه ډک وخت کښې به ښه ښه عالمان ادیبان اوُ شاعران د هغه په مجلس کښې په امن اوُ په سکون ناست وو اوُ ښه قدردانی به ئې کیدله. صاحبزاده محمدی د علم اوُ ادب د قدردانئ یوه غټه کارنامه داده چه هغه تقریبًا د ټولو لویو لویو اوُ مشهورو شاعرانو کلام راجمع کړے[1] اوُ په خپل یو عقیدتمند خطاط گل محمد پیښوری ئې خوشخطه ولیکه. اوس په دغو ښکلو خوشخطه نسخو کښې ډیر د یورپین مستشرقینو په لاس د یورپ کتب خانو ته رسیدلی دی چه یوه پکښې دغه د نجیب دیوان نسخه هم ده چه اکیډیمئ د هغې مائکرو فلم راغوښتے دے. ددے نسخې په آخر کښې خوشنویس دا اختتامیه لیکلې ده.

«تمت تمام شد دیوان نجیب بحسب ارشاد قبیلهٔ کونین مربي دارین رمبدٔ توانین نکات بدیع مخترع آئین آیات ترصیع فردوسی فصاحت سحبان بلاغت صاحبزاده محمدی سلمه الله

---

[1] افسوس دے چه د شعر و ادب دد ے لوئے محسّن خپل دیوان لاتراوسه نهٔ دے پیدا شوے!

تعالیٰ از دست فقیر پر تقصیر گل محمد پشاوری سلخ ماه صفر سنه ۱۱۷۸ د                ه
به یادگار نوشتم من این کتابت              را              دگرنه این خط من لائق کتابت نیست

څهٔ وخت چه ما ددے کتاب تصحیح، ترتیب اؤ تدوین کاوهٔ نو را محسوسه شوه چه په دیکښې څنے نیمګړتیاګانے دی، څنے ځایونه درستنٔ لوستلے کیږی۔ ددے د "ایډیټنګ" کار خو به هغسې وُنهٔ شی لکه څنګه چه پکار دے۔ د خدائے کاردنو ته ګورئ۔ چه په هم دغو ورځو کښے را له دا سلامیه کالج د بازار د جومات امام مولوی شاه سید صاحب د غیبو د نجیبؔ ددیوان قلمی نسخه راوړه چه دا را له چا دوست راکړے ده چه تاسو له درورم! په دغه موقع راته د اکیډیمئ "ماتهو" راياد شو. ما وے چه ربښتیا ده چه کوم خلق په اِخلاص سره په یؤ ښهٔ کار کښے جهاد کوی۔ نو خدائے پاک...... هغوئ ته خپله لار سمه کړی۔ اؤ بیا والس چانسلر صاحب ددے نعمتِ غیر مترقبه د اخستو منظوری را له هم سمٔ راکړه دغه کتاب را له خدائے پاک داسے په ښه موقع راواستوه دهٔ چه د چاپ نه وړاندے موږ د برټش میوزیم ددغه نسخے ډیرے نیمګړتیاګانے اؤ د لیک نه پاتے الفاظ برابر کړل. ددے ټولو خبرو د پاسه ښکلے خبره داده چه په دے قلمی نسخه کښے ډیرے غزلے په حاشیه لیکلے شوی دی چه د ب م د برټش میوزم) په نسخه کښے نشته۔ دغه شان موږ د نجیبؔ ددیوان د یوے ښکلے اؤ پوره نسخے د وړاندے کولو جوګه شو د نجیبؔ په حقله لکه چه بره ئے ذکر شوے دے چه راوړتی دے

(د هغهٔ په الفاظو کښې) یوسفزي افغان گڼلې دې داسې ښکاري چه هغهٔ د نجیب د دیوان ژوره مطالعه نهٔ ده کړې ځو چه د سوات د پولې خواوُ شا کښې ئې بیا موندې دې نو کمان ئې کړې چه دې به یوسفزے وی. نجیب پخپله په خپل دیوان کښې خپل کلے "سربند" ښودلے دے. د خپل کلی سربند نه علاوه ئې د پیښور هم ډېر صفت کړے دے لکه چه وائی:-

په عوض کښې که اِرم ځوک وماله کړی     ورله نهٔ کړم زهٔ نجیب په سربند ئې
یا
خلد اِرم فردوس به هیرکا     که ځوک اووینی سربند

دے سره ئې د سربند د ښکلو هم صفت کړے دے

چه خوبان ئې دی په مثل د حورانو     ځکه بولم زهٔ نجیب جنت سربند

د پیښور په حقله ئې یو شعر دے چه

هیڅ منک سیال د پیښور نشته نجیبه!     بیجا پور که باگ نگر دے که قنوج

بیجاپور، بهاگ نگر اوُ قنوج د دغې وخت ډېر لوئې لوئې اوُ مشهور ښارونه وُو چه پښتانهٔ به اکثر هلته تلل راتلل ځکه که موږ د دے نه داقیاس وکړو چه هغهٔ دغه ملکونه پخپله لیدلی دی نو شاید چه زیاتے به نهٔ وی ځکه چه هغهٔ په خپلو شعرونو کښې په ځائے د "بارې" د لنډی اوُ اباسین ـ نوبدا، ندے ډېر یاد کړے دے لکه

نو بدا ندے به هیر کړ دلربایه     که ځوک وکه د نجیب داو ښکو قیاس
یا
که زما په مخ دا د ښو رود وُکورے     فراموش به نو بدا کړے هم ندے

(بهاگ نگر، دا د حیدر آباد (دکن) زوړ نوم دے بهٔ)

ددې نه علاوه هغه لکه د نورو داسې شاعرانو چه دهندأو دکن نه لیدلے دی په خپل کلام کښې ډیر تکی د هندئ استعمال کړی دی لکه وانجلے سجن رتن، گُھسی، تنډره (ٹھنڈه) تجه کول، (تن دے) اؤ یؤ غزل نیم نے داسې هم شته چه قافیه نے آدت، دلاوت، پلاوت یا بتلایا (بٹھلایا) آگ لگایا وغیره قسم الفاظ دی. ددې نه هم برنی قیاس ته خځه تقویت رسی. خو بیا هم د یؤ شاعر د کلام د شعر نیم یاد ځنو الفاظو په بنا داسې قسم یقینی نتیجه ایستل درست نهٔ دی. ددې په مقابله کښې د هغهٔ یؤ شعر دے

ذهٔ نجیبؔ تړ ونے ځکه چرته نهٔ شم چه ارم ماوا فردوس شُو سربند دنه

ددې شعر نه نے داسې ښکاری چه دے د سربند نه هیڅرو باهر تهٔ چرته وتے نهٔ دے. خو بل خوا داد سربند په صفت کښې محض شاعری هم کنړلے کیدے شی.

نجیبؔ د سربند دے اؤ سربند اگرچه د خلیلو اؤ مهمند د په پوله پروت دے خو تانړه نے تهکال ده. پخوا به د ټپې حدبندی عمومًا په قوم اولس کولے شوه چه ځنے پولے پکښې وروستو سیندونو خوړونو بدلے کړے. بارے هم خپلے لارے بدلے کړے را بدلے کړی دی ځکه وروستنو حکومتونو د ځنو کلو باندېو... تانړے هم بدلے کړے. د سربند خو تانړه هم نهٔ ده بدله شوے ځکه موږ نجیبؔ هم خلیل ګڼړو نو د پښتنو د قبیلو د شاعرانو په لړ کښې به د خلیلو یو غټ نے پوره شی یعنی خوشحال بابا ر اؤ د هغهٔ د کورنئ نور شاعران ) ختک، رحمان بابا، حمید وغیره، مهمند، خوامحمد بنګشی ډه) قاسم علی آفریدے، دولت لوانړے، اؤ اوس داد ے نجیبؔ خلیل ـــ کهٔ دا قیاس

درست دی نو اوس هم خټے قبیلے داکے لری لکه واخلے یوسفزی! ـ که په دیو کښے هم داسے د ........ وړیو وړوکے شان « خوشحال پیدا شی. نو د دوئ د تاریخ شاندارے کارنامے به داسے په خړو تیړو کښے ورکے یا تتے پاتے نۀ شی.

نجیب سرښدی ځانته خلیل نۀ دی وئیلی خو د خپلے قبیلے د موندړو خړبن اوُ غوری خښی ذکرئے ضرور کړے دے. لکه ع « سرحلقه ده د غوری دخښی ژبه » یادا مصرعه چه ع « چه پرے راشی شاعران سرپښی »

دے سره ئے دخپل خاندانی شرافت د اوچتوالی ذکر هم ځائے په ځائے کړے دے لکه وائی سه ستا غلام یم که باور کړے دلربایه! ؛ گرچه زۀ یم مادر زاد اصیل په ذات که نجیب گو چه اصیل اشراف زاده یم ~~یا~~ بے پیسو د ستا دلبره یم رقیق!

د نجیب د ژوند په حقله نور څۀ معلومات په لاس رانغلۀ. البته ددۀ د یو شعر نیم نه ددۀ د ژوند په حقله څۀ اندازه لګولے شو ـ دۀ د یوُ غزل شعر کړے سه سن زرسل اووه اویا دے دلربایه! ؛ ستا په غم کښے چه نجیب ثانی انشا کړم ددے شعر نه مونږ دوه خبرے راوسیښے شو یوه دا چه دے په ۱۱۷۷ه کښے ژوندے وو اوُ شاعری ئے په ځوانئ وه. دویمه دا چه هرکله چه دۀ خپل نوم سره د « ثانی » لفظ لیکلے دے ددے نه معلومیږی چه ددۀ نه وړاندے بل کوم شاعر هم د نجیب په نامه تیر شوے دے خو تر اوسه پورے خو مونږ صرف دا یو نجیب موندلے دے دبل نجیب څۀ نخښه پته نۀ ده رامعلومه! دیو بل شعر نه د نجیب ژوند ۱۱۷۸ه پورے یقینی کیږی. دا تاریخ نجیب په یوه مرثیه کښے درکړے دے شعر دا دے

زړسل کاله پرے اته اویا د پاسه سن د هجر په دا وخت هوه حساب شۀ!

دا مرثیه حفظ د خپل چا څوانی مرګ رشته دار یا دوست په مرګ ویلے دۀ په اصل کښے دا دره مرثیے دی چه د اولے شورو داسے کیږی سه

چه آوازه ستا د مرګ تر غوږه نیو شۀ راښکاره راته خوږ ژوند زهرو کښی یو شۀ

هم په دے مرثیه کښے وائی سه

بے د ستا له مرثیو چه ئے تل وائیم بل یو ذکرے هم له دله هیر شۀ

د بلے مرثیے سر دے چه سه

ستا د هجر په آتش مے زړۀ کباب شۀ چه پر تا پسے د قبر پورے باب شۀ

په دے مرثیه کښے څینے شعرونه د فکر ور دی سه

اقربا د څکه دیو کانډ څان ژاړی تل تر تله چه د کور موضع د خواب شۀ

چه محسن مے د شاهی له کوره ووت که ئے څوا وولړ خراب اوس دیر خراب شۀ

نوم په خُله دا دیږو پس له دے ما خله اے نجیبه! چه محسن خو د په تواب شۀ

دا اقربا، او محسن مے، او د شاهی د کوره ووت، داسے الفاظ دی چه د "محسن"، څه ډیره خوږه دوستی یا خپلوی ورسره څرګندوی چه په ادیږو کښے او سیده

بحر کیف د خوږ خبره دا ده چه د غم مرثیے د اکیډیمۍ د نسخے په حاشیه لیکلے شوے دی او د برټش میوزیم د کتب خانے په نسخه کښے نشته. د برټش میوزیم او د اکیډیمۍ د نسخو د لیک وخت کښے هم دومره تفاوت نشته څکه چه د "ب"، م" نسخه سلخ (د میاشتے آخری تاریخ) ماه صفر ۱۱۷۸ه کښے لیکلے شوے ده او د اکیډیمۍ د نسخے غزلے ئے په اولسم د ربیع الاول ۱۱۷۸ه کښے

نو سره د رسول وی ردیف لیږه رباعیانې ئې لیکلی دی. خو د دې آخری پاڼې لشته ځکه نه شو ویلې چې دائې کله ختمې کړې دی) که اولنۍ نسخې د ختمید و نه لیس نے د اکیډیمۍ د نسخې په لیک ... لاس پورې کړی وی نوګویا که دائې په اوولسکی درځو کښې لیکلې ده. په دې حقله هغه په اختتامیه جمله کښې اشاره هم کړې ده. نور الفاظ خوځې هم هغه دی کوم چې موږ بره لیکلی دی په دې کښې «به جلدئ تمام» الفاظ زیات کړی دی. چې دې نبکلی خط ته ګوورو او د پنځلسو کرښو دې درې سوه او اوولس (۳۱۷) څخونو ته ګورو نو په اوولس درځو کښې دغه کار سرته رسول د هغه مشاقۍ استاذی او درسره هغه عقیدت او مینه څرګند دی کومه چې هغه صاحبزاده محمدیؒ سره لرله.

خیر داخو په خبرو کښې خبره راپیدا شوه اصل غرض مو دا ووچه هرکله چې دغه مرثیې د ب،م نسخه کښې نشته او بیا د اکیډیمۍ د نسخې په متن کښې هم نه دی لیکلی شوی نو هرومرو دا به هم ده له نکه د څنو نورو غزلو ورویستو په کوتو ورغلې دی او په حاشیه ئې لیکلې دی. موږ دا نه شو ویلې چې په حاشیه لیکلې شوې غزلې او مرثیې دوله کله په لاس ورغلې او دا بیا کله د دیوان په حاشیه لیکلې شوې دی. دا امکان هم شته چې دغه غزلې او مرثیې د نجیب د مرګ نه پس په لاس ورغلې دی او په دیوان کښې شا ملې کړې شوی دی.

د نجیب شاعری | د نجیب د کلام نه څرګندیږی چې هغه یو ښه پوهه عالم فاضل سړی وو او هغه پخپله هم په یو ځائې کښې دې ته اشاره

کړے دہ. وائی ــه

هرشاعرکه خدائے نجیب غوندفاضل کا  هله پسه به داستان غزل اُووائی

ذ هغهٔ د شاعرئ په حقله نه شو وئیلے چه په کوم عمُرکښے شروع شوه
اوُ په کوم عمرکښے دے غه څوانئ ته ادرسیده. خو د هغهٔ د یوُ شعرنه څرګندیږی
چه هغه یوُ غزل د دیرشو کالو په عمُرکښے وئیلے دے (خو په دغه عمرکښے
هم غمونو ذوړ کړے دے!) وائی ــه

لا دیرش کاله دے د عمر پوره نه دی  بیا نجیب ستا د هجران غمونو پیرکړم

د نجیب د دیوان د عامے مطالعے نه مونږ په کلکه دا وئیلے شو چه هغه
د خوشحال، رحمان، حمید، هجری، عبدالقادر او شیدا نه پس راتلونکو
شاعرانو کښے د اولی صف شاعر دے.

نجیب په خپل رنګ اوُ انداز کښے د رحمان بابا د سبک پیرو دے. هغهٔ
خپله هم د رحمان بابا ذکر په ډیر احترام کړے دے ــه

د شعراوُ سرحلقه عبدالرحمٰن دے یا  زهٔ نجیب ددهٔ د شعر دامنګیر یم
چه ئے شعر لامثل دے، بانډ سبائی  که رحمان وائی د شعر عالمګیر یم

د نجیب په شاعرئ باندے چه د رحمان بابا..... څومره ژور اثر دے په
دے حقله زهٔ یوُ دوه مثالونه کافی ګنڼم. د رحمان بابا شعر دے ــه

داجهان دے خدائے له عشقه پیدا کړے  د جملهٔ مخلوقاتو پلار دے دا
نجیب وائی ــه زهٔ نجیب نو یم له عشقه پیدا شوے؛ که دا نور خلق ذ دولی دی له موره
رحمان ــه ... د زړهٔ دے تر ترلے استوار؛ داجهان د د نیکهٔ دے که د پلار

نجیب سه چه دِ هیی شا دے زړهٔ پورې ترلے ؛ دا دنیا دِ دنیکه که د باباده ؛

هیی خو هرشاعر د خپلو تیرو شاعرانو نه ضرور متأثر کیږی. د چا نه زیات د چا نه کم. او ځکه د هر شاعر په کلام کښې د تیرو شاعرانو د کلام څهٔ ناڅهٔ رنګ ضرور ښکاری. که دا خیالات وی که تشبیهات وی که زمکه وی قافیه نجیب هم د فطرت د دے قاعدے نه باهر نهٔ دے. د هغهٔ په کلام کښې د ځنو تیرو شاعرانو رنګ برېښی. یو غزل ئے د خوشحال بابا په رنګ کښې وئیلے دے.

خوشحال سه د ښادمنو په خندا کو ؛ د غمژنو په ژړا کو

نجیب سه په کلونو د کلزار کو ؛ د بلبلو په چغار کو

د خوشحال خان ختک د یو قصیدے په انداز ئے یوه قصیده لیکلے ده. په دیکښے وائی چه

سه

قصیده د خوشحال بیګ ده ․․․․ فاضل زیاته کړه ښه لا

ما د دوی تتبع وکړه ․․․․ مقدم وو دوی له ما

د خوشحال بابا په قصیده کښې ۱۱۲ شعرونه دی. د فاضل قصیده لاس ته نهٔ ده راغلے په هغې کښې به د نجیب د وینا مطابق د دے نه هم زیات شعرونه وی. رحمان بابا هم په هم هغه زمکه کښې یوه قصیده وئیلے ده چه

" ښه ده ښه ده دا دُنیا "

خو نهٔ پوهیږو چه نجیب سره د دے چه هغه د رحمان بابا ډیر معتقد دے د هغهٔ ذکر ولے نهٔ دے کړے. په ځنو شعرونو کښې د حمید رنګ برېښی. حمید :- سه په ژړا د زړهٔ دمه کړم کنړه چوی دے وړا دا پیښو په داتیاله

نجیب به ــ سه چه تل پکښې باران د اوښوا وری ؛ نه پوهېږم پېښور دے که تیراه
(د حمید بابا اشاره بارې ته دہ چه د بارې په اوبو د پېښور خاوره
آباده دہ او بارہ د تیراه نه راځی) دغه شان د حمیدؒ مصرعه ده ــ
" خط په مخ د صنم داغ که سپوږمۍ شوه په هاله کښې "
هم دغه خیال نجیب هم څرګند کړے دے ــ
په رخسار د اشنا خط داغې نجیبه! حق حیران یم که سپوږمۍ شوه په هاله کښې
د نجیب په کلام کښې د سبکلو سبکلو او زړه راکښونکو شعرونو کمے نشته
خو د دیوان درست باغ مو د دړاندے دے نه به کوم کوم ګل درته په
ګوته کوم. هو! د نجیب د نوی نوی تشبیهاتو په لړ کښې یو څو شعرونه
تاسو ته په دے خیال دروړاندے کوم چه دا د شاعر په هغه خصوصیاتو
کښې شمېر دی چه د نورو شاعرانو نه ئے ممیز کوی.
احمدشاه ابدالیؒ اګر چه د دهلی په تخت ناست نهٔ وو خو د هند فاتح
ضرور وو شاعر هغه په خپل تصور کښې د دهلی په شاندار تخت ناست
وینی او تشبیهًا وائی ــ
احمدشاه دے چه په تخت د دهلی ناست دے که نجیب دے، چه له یاره هم کنار دے
یوه بله تشبیه ئے د هند د رومانی تاریخ نه راخستے ده. وائی ــ
پدمنی به د چنوړ په لاس ورنهٔ شی که په عشق کښې څوک خوار زار لکه رتن شی
یوه نوے غونډے تشبیه ئے د عام کورنی ژوند نه اخیستے ده ــ
چه تکیا وی پرے ملام د ماتم مونږ ته نژدے دخاطر بام دے

دغه شان یؤ دوه نور شعرونه! ؎

ستا د عشق له تښتې مې طمع نشي    چه پوره به ئې په سرومال بُوده شي!

هسې سخته په ما راوسته ستا هجر    چه پیدا زما اوږی شو په پخساگ!

په یوه موقع لکه د بونیرو نجیب هم په دوؤ کښې حیران دے. وائی ؎

که له عشقه توبه نه کرم غم خراب کرم    که توبه ځنې کوم کیږم بې پښه!

د انشا یو شعر دے ؎

نزاکت اس گل رعنا کی دیکھیو انشاء    نسیم صبح جو چھو جائے رنگ ہو میلا!

د نسیم په وړمه د انشا د محبوبه مخ خیرنیږی. خو د نجیب هم واؤرئ

د نزاکت انتها دہ! ؎

هسې شان زما د یار لطیف رخسار دی    چه شمال وربانده هم بد دعا پرېږدی

لکه چه ما وړاندې اووے نجیب ډیر ښکلی او نازک شعرونه

لری په دے حقله هغه ښکاره هم وائي چه ؎

پک چه دے شعر تمامی له نزاکته    نشته د نجیب په څیر شاعر په پېښور کښې

نجیب لکه چه د برنی شعر نه ئې څرگندیږی دہ نه یوازې د پېښور بلکه

ټول د خپل وخت د سرېټرو شاعرانو نمائنده هم گڼړی او د نورو د

شاعرانو جوابونه او په دعوی ئې تیکونه کری دی چه نن صبا د لوستونکی

په ذړه او مغزو ښه نه لگی خو داد هغه وخت شاعری دہ په کومو

ورڅو کښې چه تقریبًا هر په ځان باوره شاعر دغه شان د خپلې شاعرئ د

برائی او د ورنښت شعرونه وهے او نورو به ئې جواب کاوہ. دغه شعرونه

«تعلی» کنټرول شي او په دې ډول خپل ټول نه دی پکار ـ ځکه چه داد هغه وخت معتام رواج وو او په دې باندې د بل شاعر په لوړوالی، شهرت او عظمت څه حرف نه راځی.

په دې لړ کښې نجیب دداسې شاعرانو لوموړنه هم اخیستې دی چه د څنو پکښې لا تراوسه دیوانونه او د څنو کلام نه دې موندلې شوې لکه واخیل محی‌الدین، سلیم قلندر او فاضل. لکه چه ما په اول سر کښې ویلی دی زما عقیده ده چه خدائے پاک به دروغ خواری هم نه ضائع کوی او دروغ دیوانونه به هم یوه ورځ په لاسو راشی.

شاعر د عام وګړی نه زیات حساس دی. ځکه که هغه ځان د وخت د حالاتو نه ډیر ګټوزی نو هم نه څۀ نا څنډ خبره یا شعرے د خلے نه راتے وځی چه د شاعر د وخت د حالاتو عکاسی کوی. رحمان بابا غوندې صوفی منشی بنی‌آدم د خُلے نه «ځمه» اُدر او کور او پیښور د دویه دا ره یو دی» قسم الفاظ وزی. د نجیب زمانه خو لا ډیره د اړماکوړی، بدامنئ او لاقانونیت زمانه وه. ځکه نجیب په څنو شعرونو کښې دې ته اشاره کړې ده. یو ځائے وائی ـ

شوک چه اتلی وو هغه ادنیٰ، ادنیٰ اعلیٰ شو
کار د زمانے دایره معکوس راخرګندیږی

د سربندا او پیښور په صفت کښې چه هغه کوم شعرونه ویلی دی.
د هغې نمونې موږ ته اولوسیتے. هو هم رنګه ادم، خلد او فردوس غوندې وطن

په حقله په نورو موقعو کښې وائي ؎

چه همیش پکښې غمګین کوزم صنمه | راته دشت کربلا شنه پیښوره
چه بې یاره پکښې ناست په زړه غمژن یمه (یا) | شنه سربند نجیب ته دشت کربلا

نجیب په فارسۍ ژبه هم شعر ویلې دي. یو غزل ئې د فارسۍ هم شته
او یو غزل نیم ئې داسې دے چه یوه مصرعه د پښتو او بله د فارسۍ
ده. د خواجه حافظ یو پوره غزل ئې ترجمه کړے دے. د دواړو دغه
شعرونه دي.

حافظ: ؎ این چه شوریست که در دور قمر می بینم
همه آفاق پُر از فتنه و شر می بینم

نجیب ؎ دا څه شور دے چه ئې په دور د قمر وینم
اطراف داېره ټک په شور او په شر وینم

د نجیب په دیوان کښې یو دوه خبرے داسې هم ته راغلې چه
ما حل نه کړے شوے. یوه خو دا چه هغه ځیل نوم سره د "ثاني"
لفظ استعمال کړے دے. دوے نه خو داسې بریښي چه د هغه نه وړاندے
هم څوک نجیب نیر شوے دے. دا نجیب څوک وو، کله تیر شویدے
او څوک وو هم کنه؟ یعنی نجیب د "ثاني" لفظ په بله څه معنی کښې
استعمال کړے دے؟ دا سوال حل کول غواړي. دویم دا چه په یو
ځائے کښې ده د رحمان (بابا) نوم سره د دویمي لفظ استعمال کړے
دے. لکه چه وائي ؎

ما نجیب هم په دا طور غزل وو سے      که د ټیټې دوېرې عبدالرحمان دے

دهٔ دا شعر د رحمان بابا د هغې اوږد غزل په "طور" ویلې دے په کوم کښې چه هغهٔ د خدائے پاک صفتونه بیان کړي دی او د سر شعر ئے دادے

په نامه د هغه خدائے چې دا بیان دے
چه یو نوم ئے په نوموڼو کښې سبحان دے

په دغه شعر کښې نجیب رحمان بابا سره د د وېرې لفظ استعمال کړي دي ـ د دې نه ځرګندیږي چه رحمان بابا د مهمندو د قبیلې دغې ښاخ سره تعلق لرلو ـ دا انکشاف (کم نه کم) ماته په اول ځل وشه* ـ (دا جدا خبره ده چه هغهٔ خپله د دے قِسم حدونو نه ځان ډیر اوچت ګڼلي)

د نجیب د ژبې په حقله یؤ څو نکتې عرض کوم. د دهٔ په خط کښې یوه عجیبه خبره ما دا مُوندله چه دهٔ په خپلو شعرونو کښې د ختټکو د لهجې ټکي هم اِستعمال کړي دی لکه ډِما، ډِ تا (لکه د ستا) سیورے، بخره، پا تو شیکلي، کوشته وغیره. دا سے قِسم الفاظ ځهٔ خو ئے د شعر د ضرورته اِستعمال کړي دی او ځهٔ به لیکونکي تیروتے وی ځکه چه د اِملا نورے هم ځهٔ غلطئ پکښې مشته دے. دے نه علاوه ډیر الفاظ دا سے دی چه د پښتوانو په نیک یا کلام کښې لیدے شی لکه واخلې. دورې (آددی) پخپسر (په خپل سر، په ځان) طوره (لاحقه په معنی، په شان" لکه "بورا طوره" د بورا په شان) چاپلوسی (چاپلوسی) برمته نیول.

د کتاړ کافو، سوخه ول، خرخول، سهل، نومل، نوسيدل، نيوکيدل،
رنيوله کيدل) بيوکيدل ربوتلکيدل). وغيره -- د يوې ژبې د ترقۍ
په لړ کې يوه آهم نکته داده چه دغه ژبه د الفاظو په لحاظ نيغه
شته‌منه او په کور پوره وي. دې دپاره چه په ترقۍ ژبه د خپلو
نوو نوو ضرورتونو دپاره د نوو نوو تکو، مرکباتو او اصطلاحاتو محتاجه
وي. زموږ په ژبه کې داسې بې‌شماره پخواني الفاظ شته چه ادبي‌له استعماله
غورځيدلي يا ترک شوي دي. يائې استعمال عام نه دې. ښائي چه داسې
قسم الفاظ موږ بيا راژوندي کړو او ژبه کې ورله د دواج ورکولو کوشش
وکړو. په ديکښې هيڅ شک نشته چه نوي الفاظ په يوه ژبه کې
رانوبيتل د يوکس يا د يوې ادارې کار نه دې. هغه کوم خلق چه
ددې اهل دي د هغوئ دا فرض دي چه هغوئ د وخت د ضرورت
او تقاضې د پوره کولو دپاره داسې قسم الفاظ په خپل استعمال
کې راولي. بيائې قبلول او رد کول د ژبې د عامو ويونکو کار دې
دا کار هم د ژبو فطرت مطابق دې چه پخپله غير شعوري طور
سره سرته رسي. پوهان، عالمان او اهل قلم داسې قسم الفاظ
د ژبې په سيلاب کې دراننو کړي په داسې زرګونو الفاظو کې ژبه
څه الفاظ قبول کړي. څه پکښې بدل رابدل کړي او څه بيخي رد
کړي او غاړې نه ئې ږغورځوي. دا يو څو تکي ې د خپلې ژبې
د ترقۍ په لړ کې د وخت د يوې آهم تقاضې د آثر لاندې

ډ لیکل.

په قلمي نسخه کښې ئې د لیک په حقله د املا یو څو غلطۍ هم په نظر راغلې. دا ئے قسم غلطۍ موږ د څو نورو شاعرانو په قلمي نسخو کښې هم په ګوته کړې دي. ځکه موږ په دے حقله فیصله نه شو کولے چه دا غلطۍ له کومه راغلې؛ هر څه چه وي دا زموږ په قلمي نسخو کښې عامے لیدے شي. دا ډیر قسم غلطۍ عموماً د عربۍ په الفاظو کښې دي. او زما په نزد ددے یوه غټه وجه دا ده چه دغه الفاظ موږ د عربۍ نه پوره اخستي دي. څو آوازونه مو د عربۍ نه دي پوره کړي بلکه د عربۍ ژبے سره تړلي آوازونه موږ د خپلے ژبے په خاصو آوازونو ادا کوو کوم چه د عربۍ اصل آوازونو ته نژدے دي. دغه وجه ده چه د لیک په وخت په بے خیالۍ کښې د عربۍ درسته املا ځنے نه لیکلے شوه. څه وخت عام الفاظ هم د عربۍ په حرفونو کښې ولیکلے شي. په دے نسخه کښې ئے یو څو مثالونه دا دي.

ظهره « زهره » زکریا « ذکریا » ذجاج « زجاج » ذیرویم « زیرویم » فحش « فاش » غضا و شوه « غزا و شوه » عبس « عبث » اعلا « اعلی » زره « ذره » وغیره.

یوه بله نکته خاص طور سره د ذکر وړ ده. هغه د اضافت ژبه ده چه په فارسۍ کښې خو عام دے خو په پښتو کښې، تر کومے چه شعري ضرورت یا څه بله مجبوري نه وي نه استعمالیږي. عجیب

دا ے اضافی مرکبات ډیر استعمال کړی دی خو په لیک کښې ئې د زیر په ځائې آواز نه کتلی دی او د مضاف آخر ته ئې «ے» زیاته کړے ده لکه واخلئ «احمدِ مصطفا» احمدے مصطفا «بحرِمواج» بحرے مواج «مشکِ خطا» مشکے خطا وغیره. دغه شان هغه لیک د تلفظ سره سم کړے دے. چه زمونږ د رسم خط یو خاص لار بخیره کوی.

د نجیب د دیوان په حقله د خپلو خبرو خلاصو نه اول ضروری گنړم چه د خپلو کرانو ملگرو محمد نواز طائر، پردل خان خټک، محمد اسحاق میاں ثناءالدین، سیف الرحمن سید، نورخان سید، حضرت شاه او د نورو دچاپخانې د منتظم د هغې مرستې او همکارئ مننه وکړم چه ددے کتاب د ترتیب وتدوین، نقل، د پروفونو کتنې، کتابت او د چاپ په لړ کښې ئې ما سره کړے ده.

سید خیال بخاری
(ډائرکټر د پښتو اکیډیمئ
د پېښور یونیورسټی)

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

(۱)

جفاکاره، بې وفا ده دا دُنیا
بې وفا هم بې بقا ده دا دُنیا

په ساعت کښې مخ ګرځند کاندِ بیانه وي
ته به وائې چه بریښنا ده دا دُنیا

ډېر عالم دې پارمان ورځنې تللی
نه به شي، نه د هیچا ده دا دُنیا

هسې نه چه زړه تنها وَتا ته وایم
نه زما ده نه د ستا ده دا دُنیا

ترهغه به زیان کار ربل په جهان نوي
چه ئې تل سودو سودا ده دا دُنیا

چه دَچا یکښې سر اُوښېلی مردار شي
ګویا لوم د قضا ده دا دُنیا

پېغمبر ورته مُردار ده وئیلی
تر مُردارې بد بلا ده دا دُنیا

په باطن کښې بېحسابه ده زشت رویه
که ظاهر خوبروي نما ده دا دُنیا

هغه خوک دی بختور چه ځنې لاړه
د کل درد و غم ماوا ده دا دُنیا

که وَ نور عالم ته حوره دَجنت ده
وَنجیب وَته بلا ده دا دُنیا

(۲)

دُنیا ښځه ده چه حلاله وي د چا
که مدام ورځنې بد وائي دا سا

ګاه کېږي که ګوسنه وربانده سیورکړي
ګوندې وي چه دِ بکار شي په عقبا

که ته غواړې چه دُنیا شي زما ډېره
سخاوت کوه دا پند واوَره له ما

هو مرښنه ده چه دِ قوت وربانده کېږي
هسې نه چه دِ قارون په دود دِ بسیا

تجارت د دُنیا ښځې دَچه خوک کاندِ
وئې نه چه یکښې کاندِ خوک دِ لېوا

که څه مال دولت لوړې دَ هرچا خونښې
که څه نه وي خوک به نوم وانخلي ستا

په سبب ئې د دُنیا شهرت موند لے — کیکاؤس دے کم قبا دے که دارا
که لحاظ پکښې د دے خبرو نکړے — دَ دُنیا ته هرګز مه وایه زیبا

هم په دا چه سوال هرګوره منلے دے
نجیب ځکه تحریف وکړ د دُنیا

(۳)

که دا غداره سینه دُوینے زما — فراموش به کړے دا غوندے لالا
لکه ته چه حُسن و زیب لرے دلبره — دا رنګ زیب و حُسن نشته دبل چا
هیڅ بنده به له عیبو خالي نه وي — بے له تا چه ئے د عیبه مُبرّا
زړه مے هسے یار را کاږي وخپل ځان ته — لکه کاه را کاږي ځان ته کاهرُبا
ګویا سر په دا مانهٔ دے کیمیا غواړي — چه ښتا څوک طمع کاندے د وَ فا
چه هیڅوک وفادار نشته په دُنیا کښې — کمکی مه وے له هیچا سره آشنا
هوس مے دے د وصال په اُمید ګرزی — صد ساله دے که هیڅ دے که فنا

زهٔ نجیب په خدا ئے آخته کړمه ناصحه!
دَ عشق کسب نا روا دے که روا

(۴)

هر عاشق چه په هجران کښې پاره ګا — خوشنودی به د وصال هاله حاصل کا
چه په شان دستا مخ دے دلربا یه — عشّاق مینه په سمن په دا کیل کا
په تمام جهان پریشانه خوشبوئی شی — دلربا چه شانه ګړه په کاکل کا
د لیدو اُمید د پریکاند له سترګو — څوک چه ستا د آفتاب مخ وَ ته کتل کا
بے پرواله د رجهانه بیهوش مست وي — هغه څوک چه ستا د لبو مئے نوشل کا
په مکتب د عشق داخل که افلاطون شی — زمانه به ئے بتره تر جاهل کا

هاله پسه به داشان غزل ؤوائی
هرشاعرکه خدائے نجیب غونډ فاضل کا

(۵)

چه همیش راته جُنبش د زلفو مار کا
عاقبت م به دامار خاطر افګار کا

دریښتنی عِشق دعوه دِ هغه کا ښدِ
کوزیدهٔ چه مجنون طوریه کوهسار کا

ننګ ناموس وَته دِ شاکه تل نوتله
تقاضا که څوک د وصل له دِلدار کا

ستا رُخسار ز لفے چه زیست کا ندِ عجب دے
چوته زیست په یوه ځائے مُسلم کفار کا

له تاراج دَخزان چه خبر دار دے
بیهوده عندلیب مینه په ګلزار کا

که عاشق له تا وصال دائمی غواړی
ځان دِ ستا د درله سپیوسو شمار کا

بلبل هله نو دیکت مومی وَګُل ته
چه قبول ادل په زړهٔ زخم دخار کا

تو هغهٔ به احمق بل په جهان نوی
چه په وَصل دخوبانو اعتبار کا

تار په تار که دنجیب دخاطر خُونه
په رُخسار چه دلبر زلفے تار په تار کا

(۶)

چه دِ لخ کهٔ را نما
هوش ے لاړ شهٔ صنما!

بے تا یو ساعت دلبره!
آرام کله شی زما

ستا د حُسن تماشا که
نمر چه ګوزی په سما

لکه ستا حُسن هغه دے
زما مینه د ه هما

خط به حسن ز ر ستا کم که
بانه ے مشه خام نما

---

۱ ب۱م۱۰ د۹۱۱۲ ۲ ب۰م۲ خام ۱۲

تر شکر، نبات خوانږه دی دلربا لبان شما

زهٔ نجیب دستا غلام یم
څهٔ خدمت یاره فرما

(۷)

چه میٔن شوم زهٔ په تا — وَه سترا زما همدا
چه سحاب غوندِ دلبره — سر یکار مے شهٔ ژړا
همیشه مے غم انیس شهٔ — خوشحالی شوه بې بقا
ستا په څیر جفا کار نشته — په تمام جهان بُتا
عاشقان دِکو سنه کرځی — رقیبان دِ خوا په خوا
له حیا به بقا غوا ړی — څوک چه غوا ړی وصل ستا
زهٔ دَغم مرتیهٔ وایم — اوُدهی رقیب سوُ نا
بیلتانهٔ دِ نجیب وسهٔ
نکه شمع سوځو پا

(۸)

خوبنی خوبم به ځاپه وصل دجانان کا — خاوماں که څوک مجنون غوندِ ویران کا
چه پری دِ تو سبا نشته شرمنده ده — همسری به لتا څوک که انسان کا؟
هسے ظلم نیشه ظالم په مظلوم نکه — نکه ظلم په عشاقو خوبرویان کا
بیا به نهٔ موهی هرګز لزت د وصل — چه په عشق کبنے هر عاشق ویر دځان کا
نکه که چغار بلبلے په خزان کبنے — ستا په غم کبنے نغان هسے عاشقان کا
څوک به نوم دعاشقئ په خوله وانخلی — که اول خوارې معلومه د هجران کا
ستا په زلفو چه باد والوزی دلبره — معطر په خوشبویئ تمام جهان کا

د بخت ستوری ام به وکړ طلوع هله
کړم خدائے د ستا له د مجرې په امان کا

د دوزخي غوندې به تل په فریاد سره وي
که بې تا نجیب داخل خدائے په جنت کا

(۹)

له خوبانو چه د وصل څوک امید کا
ځان د خرم وغونوته جاوید کا

که یار لرې کړ نقاب له سپینه مخه
شرمنده به په رابع فلک خورشید کا

ستا به عشق کښې ما ته نه رسي دلبره
که د مینې لاف عمرو کا، که زید کا

دام تل دے څو د ځان غوښې و نه خوري
تو هغه به ښکاري کله حاصل صید کا

د غم هسې زړه په غم کښې مدام سوزم
لکه تل چه ښو ریدهٔ د مجنون بسید کا

چه کمندے د زلفینو په مخ جوړ کړه
عاقبت به ما نجیب پکښې یار قید کا

(۱۰)

چه م زړه وینو د دوستو کو په بازتا[1]
په جهان م کړ ښکاره د مینې راز ستا

سامعین به همه وارې دیوانه کړې
چه په مخ جوړ کړ د تورو زلفو ساز ستا

تر همه و عاشقانو سربلند شه
هر عاشق چه کړ په مینه سرفراز ستا

چه د خط مطلوب د مخ زیب و زینت کړ
نو هیڅ عبث راته څرګند کړ اوس مجاز ستا

په کرو هرنو فریښته له سپي نه ښتي
وئې کړ نیژدے و ځان زړه عماز ستا

چه رقیب بولے عاشق شوے صنم!
په سر ي بانده د سپي وکه اعزاز ستا

د وفا طمع طاعون اوس د نجیب شو
د وفا رسم و دستور چه کم اعزاز ستا

---

[1] له دا غزل د آئیډیا د نسخې په حاشیه لیکلې د ۱۲۷

چه[1] ئې ولیدهٔ د ستا رخسار زیبا — راښکاره شهٔ راته پوچ ګلزار زیبا

که دا نور خلق ایمان ورځنې غواړي — عاشقي کهٔ د منصور ته دار زیبا

چه نوماکېږي مهو زیات په رقیبانو — تر مومن دی رته شوهٔ کفار زیبا

د همه خوبانو څکه سفتدا شوې — چه تر حورو تر پرو د دربار زیبا

ستا په عشق کښې که تل سوځم رامي رضي — سمندر غوندې شهٔ ما ته نار زیبا

شمس قمر تر چاپېره کړي فدا کېږي — چه په سر که یار زرین دستار زیبا

د ترسا محبت څهٔ کانې پېر وکړې — شیخ صنعان وته ئې که زنار زیبا

چه همېشه پکښې صفت کم ستا د حسن
څکه خدا ئې کړهٔ د نجیب اشعار زیبا

(۱۲)

هغه څوک چه ستا په غم شو مبتلا — همېشه کاندې دلربا فریاد د ژړا

ښا پېروځ ته نظر نهٔ که دلبره — هغه چا چه دې لیدلې رخسار ستا

ستا د زلفو بوئي ته پیا زغوندې ښکاریږي — که هر څو خوشبوئیه مشک دی د خطا

نو هیڅ م راکو زشوې په خهٔ توک ئې — ته خورشید ئې دلربایه د سما

همېشه شان دې د مخ حسن دې دلبره — چه یوسف[2] دې آشفته دې په لقا

د آفتاب چه په سحاب مخ پټوینه — دلربا یې ستا له مخه که حیا

بې له ما چه زهٔ په تا مئین ریښتیا یم — نور عشاق بېهوده کاندې ادعا

بې له وصله ئې مرهم نشته نجیبه
هغه څوک چه تیغ د هجر که دوتا

---

[1] دا غزل د اکیدمۍ د نسخې په حاشیه لیکلې دے ۱۲

(۱۳)

چه د ترکو په رُخسار شوم زهٔ شیدا — سرېکاره شهٔ فریاد اَ ضرس ژړا
نکه کاندِ استغنا ستا له گدا به — هسې شان که یار له ما نه استغنا
ستا په شکل وخېږیږ نشته دلربا یه — که خوبان په زما نه کښې دي بسا
دَ ه پتا باندې عاشق لیلیٰ بهنه ده — قیس مجنون چه مسکن کړې دَه صحرا
واړه ستا غمونو یا ستهٔ له کار ده — که نادان دې د دې د هوکه دانا
ستا دَ قد دَ ته نبکارېږي کجه دو نه — سرو دُنه که هوڅو سمه بالا
بې له تا چه فریاد رس نلوم هیڅوک — ستا له لاسه کړم فریاد چا ته بُتا ؟
بې د ستا له سوو لبانو دلربا یه — نور هرګز نشته دخوږو زړو دوا

په نجیبؔ بلا پسې که غمجن ګرزي
خو چه تهٔ بې غمه ګرزې دلربا

(۱۴)

یم خوږلې ستا د زلفو اَژدها — نهٔ رغیږم په دمو نو هزار ها
وازهٔ خُله مزرې د هجر تر ناستهٔ مې — مګر خدایه یم تر دلبره که ږدها
دغم سیند راباندې وخوت دلربا یه — بیحسابه بې پایان ، بې اِنتها
عشّاق واړه ستا په مینه کښې غمجن دي — که دِ زهٔ دَ غم ته خرم کړم تنها

که یو څُله سوهٔ لبان زما په خُله کړې
سرو مال به ئې نجیبؔ در کړم بها

له [illegible] ۱۲

(۱۵)

چه یار راپېښ دے پرهر پدِل زما
بېهوده کاندِ طبيب طبل زما

خوېښته او سپې بوځائے نه جمع کيږی
رقيب خوښ نه دے په داکېل زما

چه بے تا د نورو شکليو مخ پرې ګورم
د چشمانو بنائی اوس وکښل زما

په تمام جهان به دا رنګ بل څوک نوی
ستا ستم او همیشه زغمل زما

چه رقیب وکښېنولے دے په څنګ کښې
دے د مرګ نښان د غم بلل زما

له رقيبه اختلاط مکوه دلبره
چه باعث دے تل په سر وهل زما

چه د يار د وصل زيرے وما راکه
په جهان کښې دے هم نه خپل زما

خوبرويان که بے تا ډېر دی دلربا به
پکار نه دے په کښکه سيل زما

د پتنګ د سوو به نوم په خله وا نخلي
که نه وو بيې په عشق کښې سول زما

نه نجيب چه ډوب په چاه ستا د زنخ شوم
له دے چاه دی دشوار وتل زما

(۱۶)

ستا د زلفو خم چه شته مسکن زما
په ذره نه دے پکار ختنی زما

د مجنون فرهاد په طور ستا په عشق کښې
تر کوهسار شته همیشه وطن زما

د چمن ګلونه څه کړمه عالمه؟
د يار مخ دے بنائسته چمن زما

تا چه تيغ را نه نيولو که د چشمانو
بے ګناه ولے کوے کشتن زما

ستا په عشق کښې نور هيڅ نلرم دلبره
بے له اوښو چه دی دُر رحمن زما

چه بے وصله به خوشحال نشي صنمه
ستا هجران که هسے زړه غمجن زما

زه نجیب د ستا له کويه څرنګه درومم
چه ستا زلفے شوے د پښو رسن زما

## (١٧)

یاره ما له لب شیرین لکه حلوا را — دا بدل د ستمونو ما مضنا را

چه مدام پکښې د وصل فخ لیدهٔ شی — د هجران له زنګه زړه هسې صفا را

له غمونو به خلاص نشم څو په خود یم — ساقي پاڅه د صهبا پره مینا[1] را

ګوندې وي چه دې نیږدې شم لاسو پښونه — ځان په وینو سور په مثل د حنا را

چه په زړهٔ د خوبرویانو اثر وُکه — ربه! ما لره د سوز هسې وینا را

په غفلت کښې بس کړه دیر عمر م تیر که — شب ګیری لکه شبنم په هر مسا را

رنځ د هجر بې طاقته کړم دلبره!

ما نجیب لره د خپل وصل دوا را

## (١٨)

ن ساقي صهبا د شونډو ډک ایاغ را — له بې نفع عقل و هوش نه فراغ را

خلق وائي ستا د حسن باغ تل تر وي — سکونت علی الدوام د دغه باغ را

په سور څیرو باندې تور داغ عجیب نسیب کا — دلاله غوندې په سو عجیبه داغ را

پریرو ده ځان چه پتنګ غوندې د سبزم — بل په لاس کښې دلربا د نخ چراغ را

خوروله م دې جال ورته د صبر — په دا جال کښې محکم نښتې رقیب زاغ را

کورو کلې څخه کړم زهٔ چه دیوانه شوم — اوس مجنون غوندې هیش سیر راغ را

پسې روح م له قالب نه په وا تښتهٔ

ما نجیب ته د آشنا د لور سراغ

---

[1] له دا دې شعر نه وروستو د اکیډیمۍ په نسخه کښې یو څو پاڼې نشته او څلیریشتم غزل پورې غزلې د ب، م د نسخې دی!!

(١٩)

دلربا څخه د سرو شونډو مدام را — په نوشل ئې بېهوشي علی الدوام را
غم د هجر نا قرار لکه آسمان کړم — لکه ځمکه د وصال قرار آرام را
یارم مینه د زړه تور ره کړه له یاره — یا بهشتي کېږي لکه قیس د جنون نام را
سرو مال م دے تحفه در له راوړے — ته خپل د وصل دلربا پکښې انعام را
چه د سور د محبت په تېر رواس کړم — اوس د وصل دلربا څخه زمام را
سپین رخسار دې لکه ورځ زلفې د شپې دي — دواړه جمع په یوځائے کښې صبح شام را
چه په بوئې ئې مستغني شي له عنبرو — خم د زلفو یاره مالره مقام را

زه نجیب نور طاقت نه لرم د هجر
خدایه بیس له دے دیار وصل مدام را

(٢٠)

زه له غمه همیشه کوم ژړا — ته بے غمه دلربا کوے خندا
د شاهانو پروا دار نوي د لبره — ستا په مینه کښې عاجز خوار گدا
چنگ او نے چه تل وهمه په هجران کښې — تسلي د خوږ خاطر کوم بېدا
افلاطون د زمانے که وي په عقل — عاشقي به ئې د بنکلیو که جولا
ستاد درو ملنګۍ د ته هوس کا — اورنګ زیب که شاجهان دے که دارا
همیشه له ماسره ته جنګ و جدل کړې — تل همخاړے له رقیبه ئې بېتا
په هر خم کښې دې د زلفو دلربا یه — ته به وائے چه نافه ده د خطا
څه له ځان ستړے کوي ناصح په وعظ — عاشقي پرېښوینکے کله ده زما

خدائے د یاره څه خوراشه دلربا یه
ځے د هجر د نجیب وار که خطا

(۲۱)

تل هغاړه کرزوي رقیب ترسا | په کړو هونو لړې خښتي له موسیٰ
چه په نیکه م تش نوم واخلي په ژبه | هغه هم نشي زما په تا ویسا
هسې شان دِ غم د هجر زړه ضعیف کړم | چه شوه سخته راته تلنه بې همسا
کار د مینې راښکاره راته عبث شه | چه د هجر په ماتم شوم شناسا
هسې حال را باندِ راوست غم د هجر | لکه وُوزي له قالبه دَ چپا سا
تا ځې ماته کړه تو یه په سر د پا سه | که زاهد هر څو خپل ځان با له پارسا

دَ مُنګانو په شتیو سره دلبره!
تا نجیب د زړه په سر وویشت ترسا

(۲۲)

چاچه دې لید لې دلربا یه روئۍ د ستا | تل ځې مقام کړې دې دلبره کوڅۍ د ستا
بوئۍ راته د مښکو شه ښکاره دپیازه طور | راغې لړ دماغه چه د زلفو بوئۍ د ستا
څه مناسبت دې د اوس د ستا له سپي رقیبه | خدائې چه کړې په خیر ملاګکو خوئۍ د ستا
خدائې چه ته کعبه د روئۍ د زړونو منفر کړې | زغلي عاشقان څکه همیش په سوئۍ د ستا
شي م حواله دوه کړدمان په زړه دلبره! | کړم متصور چه دغه دوه ابروئۍ د ستا
داد بنفشې لښتې خورې په صنوبر دي | دا که دي زلفینې په دا قدئۍ لوئۍ د ستا

ما لره که راکه څوک خوبان دَ جهان واړه
کله به پرِ د کړم زړه نجیب یوُ موئۍ د ستا

(۲۳)

که مثین په دلربا دې زړه ربښتیا | تل په سر لکه مجنون ګرځم په بیدیا
ثاني سیال یکښې څوک ستا نشته دلبره! | که څوک جمع کُل خوُبان که د دُنیا

لکه زه چه ناقرار یم ستا په عشق کښې — دا رنګ نه دے ناقرار آسمان آسیا
بیا به نه مومې تا مه د صدق همره — ځو په ژړنده کښې د غم نه شے کسیا
هسې شان یم ستا په هجر کښې دلبره! — لکه څوک چه په دوزخ کښې شي بسیا
تا به بیل آخر له ما نه که صنمه! — همنشین چه د رقیب دے بے حیا
که هر څو له دلربا د بوسے سوال کړم — هیڅ له کبر راته نه که آو آ یا

بس کړه یوځل د نجیب په غم لتاړ که
پښتو ے ورځنۍ ولے رُخسار بیا

(۲۷)

عاشقي توره بلا ده خدائے د څوک پر اخته نه کا
د کل درد و غم ماوا ده خدائے د څوک پر اخته نه کا

عاشقان پکښې تل سوزي، چه مهجور شي له خوبا نو
تو سقره بده لا ده خدائے د څوک پر اخته نه کا

عقل و هوش له سره یوسي، دیوانه لکه مجنون شي
داخاصه لے ابتدا ده خدائے د څوک پر اخته نه کا

چه هو څوک پکښې داخل شي تل تر تله لا یعقل شي
د جنون ختم قلا ده خدائے د څوک پر اخته[۱] نه کا

هر چه کړے ورسره ته کوے صنمه! — نجیب ستا له رقیبا نو خته[۲] مانه کا

---

[۱] د ب، م په نسخه کښې د دے شعر نه ور وستو یو څو پا نړے نشته، د اولسم[۱۷] غزل نه تر دے ځائے پورے تول غزلے د ب، م نه اخستے شوے دے. دے نه پس څه غزلے په دواړو نسخو کښې نشته، دا بیا د رپسے د اکیډمۍ د نسخے نقل دے ۱۲

[۲] حاد د دکوپانړه د آخري غزل مقطع ده. نور شعرا و نه ورک دي ۱۲

(۲۵)

غره مشه په دُنیا  دا دُنیا نه ده د چا
دالولئ د بازار ده  یو دم ستا بل دم زما
که ترون پورے د زړه کړے  پوهیدلے ئے خطا
ازلی عادت ئے دا دے  چه له چا نه که وفا
اوس ئے وار په تا راغلے  ډیر ئے وُغلول پخوا
په لباس ئے غلط مه شه  ده عدو دوستی نما
که لبونے کاندے وتا ته  بیا به زر که درته شا
که دے څوک تاج په سر که  بیا ویران که مقر ستا
ترنمانځنے ئے بسیاره  اے عاقله ده سزا
زیب وحسن ئے اندک دے  قباحت ئے دے بسا
که دِ دُ خندوی څخو  بیا دِ زر که په ژړا
هسے رنځ تِر پیدا کیږی  چه ئے نشته دے دوا
د باغ گل لا سپړی نوی  نه ئے کړے وی خُله وا
ناګه باد صرصر پرِ راشی  هغه دم ئے که فنا
په خاطرئے اور بلیږی  که بلبل وی که بودا
دوی که هرڅو چغار کاندِ  دا پرِ کله که پروا
که عاقل ئے باندِ پوه شه  زیات به غم دایم تر دا
په هغه څیز مینه مه کړه  چه د چا نوی آشنا
په ساعت کښے دِ بادشاه که  په ساعت کښے گدا بیا
اعتبار ور باندِ مه کړه  ښه خوب باسه دا دنیا

په دېل م عمل وکړه — چه پښېمان نهٔ شې فتا
بې بقا کاروانه پرېږده — که تهٔ ځان بولې دانا
چه په کار دې په قیامت شي — راشه مېنځ کړه په تقوا
هغه مهٔ کوه نادانه — چه هیڅ نهٔ لري بقا
اے هښیاره غوږ کړه واوره — هر طرف د مرګ غوغا
نهٔ شو خلاص د مرګ له جاله — انبیاء[1] هم اولیا
د پوشاهان ترِ مایوس لاړل — بې حسابه بې احصا
که جمشید که سکندر دو — که کاؤس دو که قبا
کهٔ شداد دو که نمرود دو — کهٔ فرعون دو که کسرا
کهٔ تیمور که همایون دو — کهٔ بابر دو که دارا
سلیمان دو که بهرام دو — کهٔ آصف دو برخیا
که سنجر دو که سرام[1] دو — هم بهمن واوره له ما
که خسرو که شاه جهان دو — که اورنګ که محمد شا
ما خولې درته بیان کړهٔ — دوئي ترې دې نه دي ډیر لا
عاشقان هم بې حسابه — خوبرویان ښائسته زیبا
که فرهاد دو که شیرینه — که مجنون دو که لیلا
که آدم که درخانۍ ده — که وامق دو که عذرا
که شهنې ده که ډیلے دو — اؤ که هیر ده که رانجها
که بوبن ده که جلال دو — که مکئي ده که موسا

---

[1] له ـ اصل ـ کند ۱۲

ډیر م دُشمیرل نوموته — زیات به څهٔ شمارم تر دا
دا همه ترخادرو لا ندِ — سکونت که په بیدیا
دغه هسې حکیمان وو — د دهر علم عُلَمَا
سقراط و که بقراط وو — که فلاطون وو که ایلا[1]
جالینوس که ارسطو وو — که تر دوئی وو هم اعلا
داره شو د بیابان خاوړے — زرغونه دی پرے لالا
چه دا هومره څنے لاړهٔ — ته به پاتو شې کجا
په دُنیا چه اعتماد که — هغه خلق حمقا
[2] تا ته کوم حیرا نیږم — چه دِ هیڅ نشته پروا
په دُنیا بانډِ مئین شوے — فراموش دِ کړهٔ عقبیٰ
زر تر زر به پښیمان شے — تهٔ چه دا لړے هوا
ګاه غوره شے په اسونو — که په اوښو غیلو غوا
چه اجل در لره درشی — نهٔ به هغه وی نهٔ دا
توښه واخله که پوهیږے — کوچ به دُکړے نن صبا
که هزار هنره دُکړے — خلاص به نهٔ شے له قضا
ځان د تلو نیوپه حساب کړه — آدم زاد لے نهٔ چپارپا
برابر دی درته دواړه — نا روا دی که روا
هغه دم چه دِ خیر مسّ[3] کړ — نور تهٔ ځان کړے منوعا

[1] په اصل کښے دا مصرع صفا نهٔ لوستے کیږی ۱۲ [2] ددے نه وروستو کلام ب،م نسخه کښے نشته ۱۲
[3] لقوله تعالیٰ اَلْاِنْسَانُ هَلُوْعًا اِذَا مَسَّهُ الْخَيْرُ مَنُوْعًا وَّاِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ جَزُوْعًا الآیة ۱۲

بیا چه مستي د چرشر که — نو رهیښي ئې عجز و عا
چه په هیڅ کښې صبر نکړې — ځکه یاد شوې هلو عا
نفس د یاد دې خدائې د هیر دې — بانډ خرنګ ئې شمید!
په جهان کښې هرګز نشته — تو ده بل عدد اعید!
هله پیسه به نه صرد شې — که د دې وکړې غشوا
چه د دین کار و نه نه کړې — څه بلائې څه بلا!
نه د ویره شی له خدایه — نه له خلقو څه حیا
همیشه کړې بد کار و نه — نالائق و ناسزا
ذبون کار و تاتر بنه شه — خدائې پیدا کړې څه یاوا
خو غرض تن پتول دې — که اطلس وی که خامتا
غرض ناسته ده پر بانډ — که وی زمکه یا بوریا
په اوربشو صبر وکړه — مه غواړه غنم حلوا
همیشه په وچ هډوکي — قانع شه لکه هما
چه سبب د بادشاهي که — کر د کار د ستا سایا
چه اوس نه کوې نیک فعل — بیا به څه کوې فردا؟
که طاعت کوې وخت د دا دې — په دا ساه نشته ویسا
د بد خیز نه نظر مکړه — څو د سترګې دي بینا
بې له بنو پر څه مه وایه — څو د ژبه ده ګویا
بې له بنو بانډ څه ماوړه — څو دا غوږ دې شنوا
بانډې مه نیسه بې بنو څه — څو دا لاس دې ګیرا
په بد کار پسې پر مه څه — څو تندرستي لرې پا

صرف ئے کړه ؤ نیک اشیا ته — دغه واړه خپل اعضا
عبادت د کردګار کړه — عزیز عمر حئ ویړیا
له اوله یو قطره وے — ګوره اوس کړے خدائے دریا
هیڅ پکار به دِ بیا نشی — پس له مرګه آقربا
څو چه ومرے هغه ورځ به — وی خپه واړه په تا
له اندوه به وی واړه — په ژړا په واویلا
تیاری به واړه کاندِ — دکفن د غسل ستا
جنازه به دِ نور واخلی — د دفن په اقتضا
چه دِ کوز کاندِ لحد ته — خاک به که په تا بالا
نور به دوئ را دروی کورته — تا به پریږدی یک تنها
هر چه وی په ځان به ستاوی — که ځهٔ بده وی یا ښا
ستا په ښه به هیڅوک نشی — که دِ مور وی که بابا
که دِ خور وی که دِ لور وی — که دِ ځوئ وی که دادا
څو مدت پس به ذ دوئ — لکه نَسیًا مَنسِیّا
په خیرات به هم یاد نهٔ شے — نهٔ به یاد شے په پاتا
هیسے رنګه به نے هیر شے — چه پیدا نهٔ وے ګویا
را چه ؤ وایه ما تا ته — پوه په واړه دی ابرِنا
په ښهٔ شان عمل پر وکړه — په هر یو حسب اجدا
تنها تا وَ ته نهٔ وایم — زهٔ ترتا یم بد تر لا

هر چه تیر شو هغه هیر شو
اوس کړه ذکر د مولا

صبح و شام په ژبه وایه ..... د باری تعالیٰ حمد و ثنا

پس له دے صلوٰت وایه ..... په احمدِ مُصطفا[۲] صلعم

هم په آل هم په اصحابؓ ئے ..... هم دده په رُفقا

گوندِ دی خدائے دِ غفا رشی ..... خائے که ستا جنت ماوا

بے له فضلٗ دده نشته ..... په دا خائے چون و چرا

قصیدهٔ دَ خوشحال بیگ وه ..... فاضل زیاتَ کړه څهٔ لا

ما ددوئ تتبع وکړه ..... مقدم وو دوئ له ما

گر چه دوئ وه ډیره کړې ..... ما ده کړې قلیلا

گوره هر څوک چه ئے لولی ..... ما دِ یاد که په دعا

نیک عمل کوه نجیبه! ..... کل عبث دی ماسیوا

بل نه شئ واے نجیبه!

اؤ خپل ځان دِ دے نسیا

(۲۶)

راکوی ئے که څوک بے جانان زما ..... په فلوس نهٔ دے پکار جهان زما

دیوانه چه ستا غمونو کړم صنمه! ..... تل تر تله شهٔ مسکن بیابان زما

د زړهٔ حال وچا ته ووایم حیران یم ..... چه بے تا نشته هیڅوک دوستان زما

ستا د مینے په آتش بانِدِ دلبره! ..... مجنون طوره وسوهٔ خانمان زما

بے د ستا له سرو لبانو که باور کړے ..... په ذره نهٔ دی پکار مرجان زما

---

۱ دے نه وروستو څهٔ غزلے د «ب، م» په نسخو کښے نشته. د آکیډمۍ د نسخے نه رانقل کړے شوے. «ب» ردیف کښے «دا رِ خال په جبین... الخ» پورے. ۲ اصل: په احمد ے مصطفیٰ!!

لکه زلفې دِ پریشانه په رُخسار دی — هسې زنګ که هجرحال پریشان زما
په سوزن دِ د بڼو په تار دزلفو — یارۀ وګنډه پارۀ ګریوان زما
مالاطمع کړه دوصل ستا په عشق کښې — په تاوان کښې لا پرېشه سرسامان زما
کورو کلی بې آرامه شی نجیبه!
چه له غمه وادرې آه فغان زما

(۲۷)

په جهان دِ کړم رسوا — لا په ما نکړې پروا
په ذره م پکار نۀ دی — بې له تا نه ما سیوا
ساه م راغله تر دهنه — که م خۀ کوې دوا
خۀ خو ورکړه خیر دعُمر — ګنړه درومی بې نوا
بې دستا له محبته — نور هیڅ نۀ لرم هوا
ستا دُ شنام راته خوابۀ دی — د بنا تو تر حلوا
جوع د هجر مرکړم راکړه — دوصال من و سلوا
تو یه وې تر مرغلرې — چه صدف دهن کړې وا
څو مجنون نۀ یې نجیبه!
مکړه تۀ د عشق دعوا

(۲۸)

له رقیب چه هدم شۀ یار زما — که باور کړې شۀ دشوار وصال زما
څکه زۀ د سیماب طور نا قرار یم — یو پرستا د هجر غم، قرار زما
که منصور غونډِ په دار شم سزاوار یم — چه هر چا ته شۀ ښکاره اسرار زما
لکه ځوګ په وبره وی له ښهما را نو — ستا له زلفو هسې شان شی دار زما

څکه زۀ له غمه کوک په کوک ژړا کړم — چه غمخوار شۀ دلربا غمخوار د زما
د ښکلو په ناوکو که ډېر سبا ورشي — خسته زړۀ شۀ دلربا افګار زما
څکه هسې کمان طور په قد خم شوم — چه د هجر په سر کېښو بار زما
تو به کار به تل ترتله شي له شعره — که ترغوږ شي د سعید اشعار زما

چه رقیب د دلبر یو ځائے ناست وي نجیبه!
دا په مرګ باندې کوي اسثعار زما

(۲۹)

د هرچا ته کار د مینے چه خندا پیشے کا — د هجران درد و الم به هغه بیش کا
کښې دستے په لاس د سترګو در له راغلم — چاویلي چه دلربا د حسن وېش کا
کښولول ستا د رخسار د هغه غوا رې — چه قبول ستا د ابرو دګژدم نیش کا
چه د سترګو تیغ وکښلے دلبر ګرزې — پرآخر به دا زما خسته زړۀ ریش کا
داکوم پټ کوم مروت زما دیار دے — چه ما کاندې بېګا نه او رقیب خویش کا
د رښتنې عشق دعوې د هغه کاندې — که فرهاد غوندې دوه نیمه سر تیش کا

یار دے هیڅ په حال د مهر نظر نه کا
فریاد و نه که خسته نجیب همیش کا

(۳۰)

یار هسې په ما تلنه په شتاب کا — عاقبت په پیروي به ما بېتاب کا
ترهغه به بل بے آب په جهان نۀ وي — چه په عشق کښې هر عاشق طلب د آب کا
عاشق دې له ما خواب یو نه ره دلبره! — هغه څوک دي چه دا ور په میان کښې خواب کا

---

ملـه دے لفظ د پاسه په بدل خط "غماز" هم لیکلے دے ۱۲

چه م تل یار ژړوی په بیلتا نهٔ کښې — خو آخر به ځان په دا او سنو غرقاب کا
کوندِ وی له سپی رقیبه چې خلاص شم — که یار لوږ دخپل وصل را ته باب کا
په رنځو چه ستوګے تورے دلوبا کړے — دا زما د قناعت کور به خراب کا
د هغو د بصارت ستوګے ړند ے دی — چه تشبیه د ستا له مخه د ګلاب کا

چه ئے خدا ئے ژوندون په تا بانِدِ موقوف که
ستا له عشق نجیب څرنګه اجتناب کا

(۳۱)

چه له تا نه څوک د وصل تمنا کا — دا له زانړې کنتوری غواړي بیجا کا
که رستم غوندِ قوت لری دلبره — ستا هجران به ئے عاجز و وارخطا کا
پرِ به ډګندم پاره خاطر عالمه! — که یوځ تار د تور و زلفو دلبرا کا
څنے ناست دی هم آغوش له خوبرویانو — څنے درست عمر له غمه واویلا کا
پوهه نهٔ ده چه په شپه له پاسه وورِی — دا فلک دے چه زما په حال ژړا کا
چه آرام غواړي عاشق دستا په عشق کښے — روا نهٔ کا نِدِ دلبره نا روا کا
دیار د وصل په لحظه عاشق بیا موی — چه سوخته ځان لکه شمع سوترپا کا

چه همیش ورته تعلیم د جفا کا نِد
رقیبان به له نجیب یار جدا کا

(۳۲)

چه مے نوش کړه ستا د سرو شونډو صهبا — څکه ناست یم زهٔ بے هوشه دلربا
له فراقه مے چشمان په ژړا سپین شو — ښه چه راغلے له سفره مرحبا
د اشنا تر قدم لاندِ خورم ناست یم — سایه څهٔ کړمه عالمه! د طوبا
چه خوبانئے په هیڅ وخت دلاسه نهٔ که — عاشقان دی په وطن کښے غربا

خسته زړه ئې له کوګله زما یوړو — چه م یار ربښمینه واغوسته قبا
ما رقیب سره سم مه کوره دلبره! — تفاوت لری بسیار رمز ره روبا

په نجیب شوه دقیامت تر ورځې سخته
لا به کله د هجران شپه شی صبا

(۳۳)

که م تیغ ستا دچشمانو سور په خون کا — داستا عشق م له زړه کله بیرون کا
که کبک ډ[1]ې په خرام شته نپوهیږ م — که دلبر دې چه په شین شین یون کا
طبیب مه راولئ خوښ په رنځ دعشق یم — چرې نه وی چه م لا تر دې زبون کا
هله بسه دِ دعوی دعاشقئ که — هر عاشق که ځانله صحرا لکه مجنون کا
ستا په عشق کښې به کم عقل شی صنمه! — که هر څو دعقل لاف افلاطون کا
ملائک کله قربت کاندِ و سپو ته — یار به څه له سپي رقیبه پیوستون کا
که زه مرګ له خدا یه غوارم کوم م مکره — هجر تریخ په عاشق باندِ خوږ ژوندون کا

که ئې شعر دنجیب ترغوږ و تیر شی
آفرین به باندِ هر شاعر پښتون کا

(۳۴)

دلبر با له ماجدا شته څه سبب؟ — له رقیبه[2] خوا پخوا شته څه سبب؟
ستاد سترګو په تیغ باندِ دلربا یه — خسته زړه زما دوتا شته څه سبب؟
ما ته کښینا ست ترش جبین دلبر په قهر — ورقیب[3] ته په خندا شته څه سبب؟

---

[1] په بدل خط د دې مصرع اصلاح دا سې شوې ده چه کبک دری دې ...... الخ ۱۲

[2] په حاشیه غماز لیکلي دی ۱۲ [3] په حاشیه "اغیار" لیکلي دی ۱۲

توری زلفې دِ په مخ باندِ صنمه ! | راته جوړ دام د قضا شه څه سبب؟
چه دِ د دینم درست زړه دم لکه پانړه | هیسته ستا نړم وارخطا شه څه سبب؟
تاچه لوی کړ حجاب له سپینه مخه | درست جهان کړه په غوغا شه څه سبب؟
ماوی اوس کښېږه په ما دلبر مشفق شی | راته سر په دُشنام لاشه څه سبب؟
ستاد عشق په درد وغم کښې دلربا یه | قدم خم ترکان لاشه څه سبب؟

دنجیب نه پیښبور د ستا په غم کښې
ګوره دشتِ کربلا شه څه سبب؟

(۳۵)

بی له تا دمې په ما هیسې حال اُحبا به | لکه کب چه په خشکۍ پروت وی بی آبه
بنهماران پراته په ګنج دی دلربا یه | که په مخ دِ دی زلفینې پیچو تابه
چېرې نه وی چه تلوک توک م که دلبره | زه ویرېږم ستا د سترګو له قصا به
دیدار کوی به کله پرېږدم څوحیات یم | راته مه وایه ناصحه! له دی با به
بل به نه وی لکه زه چه یم دلبره! | عاشقان که ستا د مخ دی بی حسا به
نصله پسه دِ لاف که د خپلې مینې | که مجنون غونډ څوک شی خانه خرا به
چه په خښه ئې د دُنیا له غمه خلاص شوم | صدقه شم ستا د شونډو وله شرا به
له سحا به تهو سنکاره شه نپو هیږم | که څوکند دلربا مخ که له نقا به

چه خبره ئې له خپله سره نه حنیږی
نجیب هیسې غم د هجر که بیتا به




ملهٔ اصل ،، دشتی کربلا ،، ۱۲

(۳۶)

هجر کړم سینه کباب به | په وصال مې کړه سیراب به
پاخیدې نهٔ شم له خاٰ به | هجر هسې کړم بې تاب به
رند زاهد کله خلاصیږی | ستا د زلفو له طناب به
واړه خلق په لړزان دی | ستا د سترګو له قصاب به
روغ عاقل دیوانه کاندې | شه خبر د عشق له باب به
عاشقان واړه بې خود دی | ستا د شونډو له شراب به

نجیب کړه له یاره وصل
اې مسبب الا سباب به!

(۳۷)

چه تل ثابت مې په هجران کښې د محبوب | شو چشمان زما سفید لکه یعقوب
تفرقه د نیک و بد نهٔ شم کولې | هسې شان دِ غم د هجر کړم مجذوب
د وصال اُمید هله کوه له یاره | که صابر شې په بلا لکه ایوب
یم هزار رحمه شاکر په دا دلبره | چه شوم ستا په عاشقانو کښې محسوب
چه یو عیب د بل سړي وی تل دِ یاد وی | فراموش دِ وی د ځان هزار عیوب
تنور رونه دی تل اور پکښې بلیږی | د عشاقو که ته ګورې قلوب

بې هوده آه او ژړا د کوئ نجیبه!
تغیر نهٔ خوری چه په لوح دی مکتوب

(۳۸)

هسې شان شوم زهٔ په بحر د هجران ډوب | لکه لار شی په دریاب کښې غواصان ډوب
سیند داوښو چه په ځې زما بهیږی | عاقبت به په دا سیند ګوډ ستا جهان ډوب

وآه دود چې م له خولې همیشه درومي
که نه کوړې په دا دود م که آسمان ډوب

عاشقۍ ته شوي ستړ کوه که نبټ کړې
تل به تللې نه په فکر هر زمان ډوب

چې منکر دوست له حُسنه د لوبا یه
د طوفان په چپو ځکه شه کنعان ډوب

که داچوي خوک کا نرې وکوهي ته
په هجران کښې زما زړه شه همیشان ډوب

بیا به مومي بادشاهي د یوسف طوره
که په چاه کښې د زنخ که نجیب ځان ډوب

(۳۹)

که خبر شي خوک د هجر له عذابه
و به نه لولي یو حرف د عشق له بابه

غرق د هجر په دریاب کښې همیشان شوم
مګر خدای م که بیرون له دې ګرداب به

له خاطره م د صبر و سکون یوړ و
چې را یوړ ته د کړه سرستوګې له خوابه

سینه سوي ستا په هجر کښې تل ناست یم
د سرو لبو په ادبو م کړه سیرابه

همیشه تاب لري هجران د ستا د لبره
چې م سوزي تل ځګر له د غم تابه

چې له وصله د اشنا محروم نه شي
همیشه فضل په نجیب د کړې وهابه

(۴۰)

چې بندي شوم ستا د زلفو په طناب
اوس به څه کړم ستا له عشقه اجتناب

همیشه به دیوانه په صحرا ګرځي
خوک چې وخښي ستا د سرو شونډو شراب

ځکه شه ضرب المثل د عاشقانو
چې مجنون که ځان په مینه کښې خراب

ستا له مخه نو شوم یې د لوبا یه
همیشه چې پتوي مخ په سحاب

ستا د هجر په آتش کښې د لوبا یه
مدام سوزم زړه په مثل د کباب

ستا په طور نشکلي غواړي نه ي مومي
همیشه چې حرکت کا ند آفتاب

ستا په غم کښې تړخیکه په ما تنګ دے — که جهان دے د نور خلق ته وسیع
سپے رقیب به ما وژلے لرغونے وه — که دلبر زما د دۀ نۀ وے شفیع
اور د هجر چه تور داغ دے باندِ ایښے — زما زړۀ دے که لاله دے د ربیع
هسے سرو نۀ کجوره نۀ چنار شته — لکه ته لوے دلبره! قد رفیع
ښاپیری دِ و نسبت ته حبشیانۍ دی — هسے درکۀ خدائے وَتا حُسن بدیع
یۀ نجیب در مخے څۀ وغړه وی غاړه
درست جهان چه ستا د حُسن دے مطیع

(۲۲۱)

دلبازه ستا مطیع یم ته مطاع — حُکم نۀ اختیار دوم له تا وداع
خویو سر لرم ما تا ته دے پیشی کړے — بے له سره لو رځۀ نۀ لرم متاع
په هجران کښې همیشه خونِ جګر خورم — ستا په عشق کښې ما دا وکړه انتفاع
چه دلبر د دۀ همیش معاونت که — بے هوده کړم له رقیب سره نزاع
هغه کله توانه د رباب آوری — توانه چه ستا د مینے کړه سماع
کُل جهان به ډک له نُوره شی نجیبه!
که دِ یار له مخه لرے کۀ قناع[1]

(۲۲۲)

بے دلبره که زۀ سیر کړم د باغ — د غه باغ ما ته ښکاریږی لکه راغ

---

[1] پرده!!

دُهیچا تہ لہ دماغہ نظر نۂ کہ ترشاهانو خوبان زیات لری دماغ

بے د وصل لہ صیقلہ بہ ورک نشی ستا هجران م پہ زړه کینبوهلی داغ

کہ دِ باغ د مخ تازه دے زۂ لے څۂ کړم چہ مدام وربانذِ گرزی رقیب زاغ

د ژوندو پہ حساب نۂ دے هغه مړے چہ لہ عشقہ دیار زړۂ لری فراغ

عاقبت بہ باندے وُسوزے نجیبہ

چہ تل بَل دے ستا دیار د مخ چراغ

(۲۳۳)

یو ځل شوے لہ دلو باخوا پخوا دریغہ سپے رقیب درځنے شولے جُدا دریغہ

داسم قدم دهجران غموموخم کړ قد دیار زما دلاس شوے همسا دریغہ

واصلان دِ بادشاهی کہ ددو کو نو مُشرف دِ شوے پہ وصل بیا دریغہ

یادِ مهر محبت را باندے تل وے یا لہ سره پہ تا نۂ وے مشیدا دریغہ

تا بہ خوئ د جفا کلہ وو زده کړے کہ رقیب در سره نۂ وے آشنا دریغہ

همیشہ چہ نۂ پہ ما جور وجفا کړے دا خصلت دِ شوے بدل پہ وفا دریغہ

تیغ د آه پہ لاس وُکینلے تل ولاړیم بلند سرمِ در رقیب کړے دوتا دریغہ

بیا هلہ آحوال د ځان گوره رقیبہ

کہ نجیب کۂ خدائے لہ یاره هستا دریغہ

(۲۳۴)

شاد شوے زۂ ستا پہ وصال یو زمان[ن] دریغہ فارغ شوے لہ دردو غم دهجران دریغہ

لہ حاشیہ ل د "ب.م" نسخہ کینے نشتہ ۲!

دخوبانو زینت روزګار مهرو وفا وے — یا پر مهٔ وے آشفته عاشقان دریغه!
دآه تیغ چه مې وکښلې دے په لاس کښې — غوڅ مې کړے په دغه تیغ رقیبان دریغه!
رقیبان لکه سګان راته پراته دی — تیر شوے زهٔ دستا په لور په امان دریغه!
په طلب کښې مې ئې درست عمر کړو رشته — کشکه نوش مې کړے مې ستا دلبان دریغه!
چه رقیب ئې کړے جدا زهٔ ئې واصل کړے — دا احسان راسره وکړے جانان دریغه!

چه ئې هیچرے وصال دیار بیا نهٔ موند
نجیب مهٔ وے پیدا کړے سبحان دریغه!

(۲۲۵)

چه لاله غونډې مې زړهٔ شهٔ پکښې داغ — یاره بخه کړې مې زهٔ ستا دحُسن باغ
په راتلهٔ به دِ دخط حُسن زائل شی — بیهوده وربانډِ ولے کړے دماغ
نورعشاق دِ واړه ئې دشونډو وڅښی — چه وار راشی په ما وا ئے ړی ایاغ
بے دلبره مې آرام دخاطر نهٔ شی — خدائے دې یاره که ئې راکړی څوک سراغ
عاشقان پرِ پتنګانو غونډِ سوزی — په هر ځائے کښې چه کړے بل دمخ چراغ
ترق به وچوی زما زړهٔ په هغه دم کښې — ستا له غمه که دے بیا مومی فراغ
ستا دهجر درد و غم چه دیوانه کړ — مجنون طور نجیب څکه ونیو راغ

(۲۲۶)

دلربا چه په رقیب که تلطف — څکه زهٔ کوم له غمه تتأسف

له اصل- طرق ۱۲ ؛ ۲ه بیابان ۱۲

خوږم سر د سپي رقیب نه دے پوېږي — بیهوده کړم زه دلبره! تصلّف
هغه څوک صادق عاشق نه دے کاذب دے — چه دیار د مرضۍ کاندے تخلّف
ده به خط د غلامۍ وه ورکړے — ستا په دور کښې که دے مهتر یوسف
چه دیار تبعیت نه کا خود رائي که — د هغه په عاشقۍ باندِ شه تُف!
بے له وصله ستا، صحت زما دشوار دے — که افسون که مسیحا را باندِ چُف

په مخلوق د کردګار کښې اے نجیبه!
هیڅوک نشته ستا دیار د حُسن کُف

(۲۲۷)

که شي جمع حکیمان د هر طرف — درد د مینې بهرم نه کړه برطرف
ځکه ډک ئې شه د روڼ په موغلو — چه په تشنه کیږي ه صبر کړو صدف
که وصال د دلبر پیره غوږ کړه ماته — مقطوع سر ورته خپل ونیسه په کف
وبه نه کاندِ پروا د بادشاهانو — که کړا ئې شي ستا په وصل مشرف
هغه وخت ئې پوېکوه چه دِ رضا شي — ماته سر دے ستا په مینه کښې غلف
ستا وصال رم چه بیا نه موند[1] دلبره! — بیهوده رم دَ رد او سنو کړه تلف
ستا له وصل نا اُمید لاړه صنم — سلیمان که برخیا ده که آصف
فاصبر صبر جمیل پکښې فال وخوت — ما چه وکوت یاره! ستا د مخ مصحف
د نرو په تیوے نه وُلی له کبره — که ویار نه زه نجیب کړم ځان هدف

---

[1] داشعر د اکیډیمۍ نسخه کښې نشته. ددے دوېمه مصرعه دے پسے ګلید لی غزل کښې هم راغلے ده.

(۲۲۸)

چہ[1] حاصل رم ستا د مینې کہ شوف | ځکہ شوم ترکل عشّاقو زړہ اشرف
ستا پہ مینې کښې رښتیا وایم صنمہ! | را تہ نہ ښکارېږی سر تکہ علف!
چہ رم هیڅ پرِ د وصال خویں ونہ کړ | بیهودہ رم ډر د اوښو کړہ تلف
زړہ ئې ستا پہ محبت کوم مهرویہ | کہ کاوہ پہ وزارت فخر آصف
تاریکی کل جهان لاندِ کړ د لبرہ! | لو حجاب کړہ لہ سپین مخہ بر طرف!
ستا مخ تشبیهہ بہ څہ کوم لہ نمرہ | چرتہ سیم دے د لوبا چرتہ خذف
تل دروں بہ ئې وی ډک پہ مرغلرو | کہ قانع شی څوک پہ مثل د صدف
د ښائست زکوٰۃ وما را کړہ دلبرہ! | چہ بے مائے بل هیڅوک نشتہ مصرف

چہ د ښکلیو محبت وَتہ هوس کړے
اے نجیبہ! خپس وُنیسہ پہ کف

(۲۲۹)

کہ تہ چہ پہ ډیر حسن ئې موصوف | هسے زړہ پہ رښتیا مینہ یم معروف
د ایاز پہ ظرافت محمود مئین وہ | هسے نہ چہ عشق پہ حسن دے موقوف
کہ نچوازړہ دحذیذ پہ څیر ثقیل وُم | اوس ستا مینې کړم زړہ سپک پہ څیر سوف[2]
نور خوبان بہ لہ تا څرنگہ همری کہ | تفاوت لوی بسیار جید ز یوف[3]
نہ پیښېږی ستا د مخ شغلے دلبرہ! | کہ ئې تہ پہ زر حجابہ کړے سا غوف[4]
همیشہ دِ پکښې دی څنې ومہ ؤزہ | چہ خدائے زړہ کہ زما ظرف مینہ ظروف

[1] دا غزل د ب م ۔ نسخہ کښې نشتہ ۱۲ [2] ورټا [3] کړہ ناکوہ ۱۲ [4] نغښتے ۱۲

(۲۳۰)

چه تر خوږ م ستا د حُسن شو اوصاف — شته له مانه بر طرف د صبر لاف
رقیبان به دې قربان کړه تر عُشّا فتو — که د رلود دې خوبرو یا نو خته د انصاف
دا نشان وارړه زما د بد بختۍ دے — چه د خط راغے دلبره! په مخ صاف
دا بو خته شنیع خصلت دے د خوبانو — چه فرق نه که د ارذال و د اشراف
ستا د لاس له برکته زما جامه! — شته خوشبویه د ختن د آهو ناف
لبې کړه ویره د جفا راسره وکړه — لو ږم هیڅ نشته طاقت مه کړه اسراف

د رقیب د ناکړدو علاج به وُکه
که دلبر که د **نجیب** گناه معاف

(۲۳۱)

ډُبه چوی له غمه یاره زړه له مانه طوق — هیرم که له زړه شی چو ستا د عشق سبق
نشته په جهان کښې دیوه خوبرو ځی دلبره — هسې لکه ته چه د سپین مخ لوے رونق
ځکه هسې شان په ما دلیر راځی صنم! — دے چه ستا د وصل سپی رقیب ځځه بیرق
خه خو د تلفین د یاره راشه دلربا یه — پروت یم ستا د هجر په مرض کښې نیم رمق
دادِ کوم انصاف دے په زنځیر د لو روز لفو — زه دِ مقید کړم او رقیب دِ که مطلق
خه خو تار د زلفو او سوزن د بڼو راکړه — زه چه پر رفو کړم دلربایه د زړه شق
دیو خطر لری غوږ کړه و ما وَته نجیبه! — مه دروه تنها د عاشقۍ په نسق

(۲۳۲)

خو چه سور شوم ستا د مینې په براق — تا په لاس تازیانه راکړه د فراق

دازما خاطر پہ مثل مصدر دے | تل ترکیب ی دغمونو اشتقاق
ځکہ ناست یم بے طاقت او بے مجالہ | چہ م ھجر کڑ دلبرہ طاقت طاق
چہ رقیب او دلربا ھمخاڼہ ی گوزی | معلوم شو زما د مرگ کہ اتفاق
تل تر تلہ کا ندِ قتل دعشّا قو | خدایہ ورک کڑے دخوبانو بداخلاق
پہ چشمانو کښے م ځکہ گل پیدا شہ | چہ وھی م یار دھجر پہ شلاق
چہ لہ ژوندہ دیر پہ مرگ خوښ یم صنمہ | ستا ھجران کہ پہ ما ھیسے ژوندون شاق

طمع اوس د ژوند کڑ در ځنے مکړہ
چہ پیدا شہ د نجیب دغم اطلاق

(۲۳۳)

ھسے شان سخت تر دمینے دے طریق | چہ رفتن باندِ محال دے پہ تحقیق
لہ ھر چا ځکہ مدد غوا ړم پہ عشق کښے | چہ لاس اچوی ھر بوی تہ غریق
پہ دا لار چہ خدائے روان کړم بے اختیارہ | کشکے شوے اوس دلربا زما رفیق
بیہودہ مُودّت[1] غواړم لہ رقیبہ | لہ مؤمنہ دوستی کلہ کڑ زندیق
ترغاښونو دِ خدا دُرِّ شہوار شہ | ترسرو شونډو دِ خدا شہ سرِ عقیق
کشکے وے پہ ما د دے ذرہ مہ بخرہ | لکہ دے یار پہ رقیب مشفق شفیق

کہ نجیب کوچہ اصیل اشراف زادہ[2] یم
بے پیسو دستا دلبرہ یم رقیق

لہ اکیډیمی نسخہ "زہ مدت"، ۲ لہ مرئیم

(۲۳۴)

هر سړے چه شهٔ عاشق په دین د عشق — په تندی به همیش خوری سنګین د عشق

که ځوک چین ماچین له د روهی زهٔ ئے ځه کړم — خپل وطن شهٔ ما ته چین ماچین د عشق

څکه تل بانډ سورلی د دلبر خیال که — د داره ستوکے چه زما شوے زین د عشق

خوب آرام ئے له ما یو ړ تل ستر ستله — چه م لاندِ کهٔ تر سر بالین د عشق

بادشاهی به تل د نبهو د جنون که — چه په کوته که هر ځوک نګین د عشق

که قویا د کړم که نارے و هم کړم نهٔ یم — چه خاطر م کهٔ ځمونو خوړین د عشق

چه ئے کښلے تمامی د زړهٔ په خون دے
دیوان کوره د **نجیب** رنګین د عشق

(۲۳۵)

نکه ډے[1] چه دلربا په زما سنا عشق — دارنګ نهٔ وه د وامق د عذرا عشق

حیران پاتے شو مجنون راته په کور کښے — چه ی دهٔ شهٔ ښکاره زما ږښتیا عشق

چه هم کانډ ننګ و نام هم عاشقی که — په هغه پورے کوی همیش خندا عشق

چه عاجز ئے عالمان په پاخول شی — په عشاقو هسے کښینوی بلا عشق

لکه کاندے هلکان لوبے په درو — د غم هسے شان که لوبے په تقوی عشق

چه د یار له جفا جور شکایت کړم — خدائے م هیڅ ما ختم مکړه په دا عشق

که هر ځو م پټاوهٔ په ډیر حیله — عاقبت م په عالم کښے شهٔ رسوا عشق

---

[1] دا غزل د ب، م نسخه کښے نشته دے۔

هیسے نه چه یړ نجیب پکښې ژړا که
عالمونه دی سرګرې په ژړا عشق

(۲۳۶)

درد و غم نیڅ دے ومرګ ته کړم تحقیق — دلربا یه! وګوره ته په دا تصدیق
هیي زړه د غم آندا وکا په دریاب ډوب شوم — لکه شي غوّاص په بحر کښې غریق
افتراق ئے اوس وما وته دشوار دے — چه دلبر شه له رقیب سره رفیق
هغو بیا مونډ سعادت په دوارو کونه — چه په اور کښې سنا د هجر شو حریق
خپل طورم تل اچوی بل اور ته — شه زما په ځان رقیب لکه زندیق
د وَتو اُمید اوس مه کوه نجیبه!
چه نه ډوب شوے د زنخ په چاه عمیق

(۲۳۷)

څوک چه سنا د وصل تاج نه لری شوق — هغه کوره ومعراج ته لری شوق
کښت وکو دِ ستا د مینې هله که څوک — چه اول د غم و باج ته لری شوق
ځان دِ ډوب پکښې حساب کا نې صنمه! — چه د عشق بحرِ موّاج ته لری شوق
چه د عشق په درد دردمن وصادق نه دے — چه د دے مرض علاج ته لری شوق
یار چه کا نرے د جفا په لاس کښې ونیو — د ویشتو د زړه زجاج ته لری شوق
معلوم شو چه خپل ژوند ون ئے بکار نه دے
چه نجیب د عشق وَراج ته لری شوق

---

له دا شعر د اکیلهٔ یمی نسخه کښې نشته ۱۲

(۲۳۸)

بیوفا شهٔ ځکه اوس د دُنیا خلق ‏— چه بیې ون شهٔ ځنې تول د وفا خلق

دیوهٔ کار په سبب دِ نا آشنا شی ‏— که دِ ډیر وی په جهان کښې آشنا خلق

چه به نهٔ وه د نمرود فرعون په قوم کښې ‏— هسې زنګ په دا زمان شهٔ پیدا خلق

چه پیدا شهٔ وارهٔ زهر قاتل کوره ‏— خدا یه! کومه خواته لاړ شهٔ حلوا خلق

پهٔ دُنیا کله نظر که خدائے رسول نه ‏— دائے ننګ وے بے ناموس، بے حیا خلق

همیشه ئے زلیست روز کا روی له درو غو ‏— په داد ورخوا موش کړهٔ رښتیا خلق

چه د دین کار ئے هرګز له لاسه نهٔ شی ‏— چارپائے بنهٔ دی که باور کړې تو دا خلق

یو ډیوهٔ نه کوښے نی بل وَ بل ته ‏— هسې لوئے شهٔ په دا دور مبتلا خلق

خو به راز د هیڅ پته سائے نجیبه!
عاقبت به دِ دا راز که رسوا خلق

(۲۳۹)

چه آشنا زما له ما نه شهٔ مفروق ‏— په آتش یم شهٔ د هجر زړهٔ محروق

دے صورت زما رباب شهبازم ژبه ‏— غږ وی ئے غم، تار و نه ئے عروق

ستا د وصل عهد وثوق نهٔ لوی ځهٔ شو ‏— که زما محبت ډیر لری د ثوق

دا نه وه کولی سورے کړم پورے دورے ‏— چه دِ وُو وښتم د هجر په سندوق

ګل سو دا یم د غمونو ځنے وُ کړه ‏— چه داخل شوم یاره! ستا د عشق سوق

دیوانتو په علاج ئے نهٔ پوهیږم ‏— درد د وصل چه وما نه شهٔ مغلوق

نهٔ به وی په ګل مخلوق وکو دکار کښې ‏— لکه دے خوبروئی نجیبه! ستا معشوق

(۲۴۰)

کوره څوک چه په سمند وی سور د عشق | وی صلاح به د دغو پیغور د عشق
شیخ! څه کوے عبث زهد، راشه واوړه | چه هر څوک وهی ناره هر لور د عشق
نه په موک څنې خلاصیږی نه په زوند څوک | چه ور پورے شی عالمه! پور د عشق
دست بسته به منصور طور ځی و دار ته | خدائے د مه نیسه هیڅوک په تور د عشق
ساکنان ئے تل بے خوب وبے آرام دی | په هر سوق کښې چه برپائے شی شور د عشق
څکه هر ځائے ئے قیصے د صدق کیږی | پروانه چه وسوځان په اور د عشق
څکه وینے م له سترګو تل جاری دی | چه م روڼ شی تل خاطر په لور د عشق

دلبا نو جیڅ ور کړه که به سبه کړے
نجیب وچیچه په زړه منګور د عشق

(۲۴۱)

که یو ځائے که دد ے د هر شکلی ګل څوک | وبه نه وینی دستا په طور بل څوک
نه پیدا وه نه به بیا له د ے پیدا شی | لکه لښته اوس دستا په شمایل څوک
د مجنون غوندِ کم عقل شی په عشق کښې | که هر څو وی افلاطون غوندِ عاقل څوک
سر دِ و نیسی پریکړے نچیل لاس کښې | چه هوس کاندِ د شکلو د بور حبل څوک
همیشه به پکښې وی و به نه وزی | چه په چاه کښې ستا د زنے پریو تل څوک
هسے ستان د بیلتانه عظیم دریاب دے | چه په هیڅ رنګه ئے نه مومی ساحل څوک

نجیب ستا د پاره بار د رقیب وړی تل
کنره وړی چرته دا همو تحمل څوک

## (۲۴۲)

زړهٔ د هر عاشق چه په جفا دلبر سوری که
وصل ئې مرهم دی چه ئې داخنجر سوری که

ستا د وصل طمع د هلهٔ کاندی دلبره !
نوک چه په تیشه د فرهاد طور غر سوری که

پس له هغه شی په خوب د پوزه د خوبانو
څان چه په الماس سړاول گوهر سوری که

بام که د وصال هر عاشق جوړ کاندی په خپسر
غلیٰ ئې د هجر د غم بام په سر سوری که

بیا به مومی هله شیرین مغز دیار د وصل
نوک چه بادام طور تمامی جگر سوری که

وصل د ستا غواړی له عالم گوشه گښینی
داچه په بیابان کښې مشائخ کمر سوری که

وی چه لکه سوری د غلبیل که د بادر شی
مرگ د فرزندانو هسې شان پدر سوری که

چلپ رم که دغا سبو ستا په شونډو گیسو څه شو
داچه په منقار سره طوطی ثمر سوری که

جوړ که زړهٔ نجیب سپر د زړهٔ کرم د دلبر ته
دے په تورو غشیو د بڼو سپر سوری که

## (۲۴۳)

چه په دام کښې ستا د زلفو څان بندی که
هغه کس به مدام عیش و خورسندی که

که رخسار زلفې ښکاره کړې د زاهد ته
دریا توبه به ماته په تندی که

ستا له سترگو جادوگر و سحرگر و
کوم سړے دے چه به څان ځنې خوندی که

که چشمان زړه د رته د دم قدم پرې نه ږدی
ستا د کبر توسن هسې شان تندی کبه

مشکین خال د سپین رخسار د دلربا دے
که محمود د ایاز ولاړ بر کړندی که

د رقیب علاج به کړے مالوه غن وه
ولے څه کرم چه دلبر د ده کوندی که

ستا د قد وته سرکوزی ده دلبره !
که هر څو سرو د باغ سربلندی که

کہ افسون پرِ دلبر پو کاندے نجیبہ !
مُردگان بہ دجهان دارہ ژوندی کہ

(۲۴۴)

سپین رُخسار کہ لہ حجابہ یار عیان کہ — پہ نارو فریاد بہ سر وارہ جهان کہ
حُکم مادہ ننگ و نام پسے شا کرے — چہ د رو غوچارے کلہ میز و بان کہ
تشی نظر بہ حبطہ وربانڈے نۂ کرم — کہ بے تارا تہ خوک جمع کل خُوبان کہ
لکہ تۂ دا دِ بو آرزو لرو ینہ — آرزو هسے ستا د وصل عاشقان کہ
هغہ مۂ بولہ رشتنے عاشق وا ڈرہ — چہ پہ عشق کښے رعایت د سرو سامان کہ
دیار وصل دا یئ بہ هغہ مومی — چہ مجنون غونڈ پہ عشق کښے محو ځان کہ
یار چہ کوری هسے شان پہ برند ستوکو — خود بہ وران زما د صبر خانومان کہ

پہ وصال کښے نجیبؔ هسے پہ عشرت یم
لکہ عیش عشرت پہ تخت بانڈِ سلطان کہ

(۲۴۵)

خوتاراج دِ دلربا پہ جفا نۂ کہ[له] — خوبنی خورم بہ دِ پہ وصل اصلا نۂ کہ
د هغۂ عاشق عشق نۂ منی نور خلق — چہ مسکن د مجنون طور صحرا نۂ کہ
لکہ کاندِ چہ غرور د دلبر پہ حسن — غرور هو مرہ شا جهان د دارا نۂ کہ
هسِرہ کلہ پرِ یار ن دی موهم وصل — خو ستینہ د عاشق هجر دوتا نۂ کہ

له دا غزل د ب،م نسخہ کښے نشتہ دی!

دھر ښکلی جفاجور خوئی عادت دے    زما یار د جفا رسم تنها نهٔ که
چه خزان تل په بهار پسې را درومی    کبک دری و باغ ته مینې په دا نهٔ که
که لقمان غوندې دانا د زمانے وی !    زړهٔ ضامن ئیم که ستا عشق ئے لیونهٔ که
نکه ته چه ما په تیغ د غمزو وژنے    دا رنګ قتل هیڅ یو ښکلے بُتا نهٔ که
چه همیشه ئے مُلا تړلی وی جفا ته    خدا ئے دِ څوک له هسے ښکلی آشنا نهٔ که

په وصال کښې چه نجیب هم په ژړا وُه
په هجران کښې به دِ څوک ژړا نهٔ که

(۲۴۶)

څوتیر نهٔ که جفاجور د حبیب څوک    ځان به کله وحبیب ته که قریب څوک
ستا کوڅه موم سرای زما دلبره !    دے مقام د ملائکو، سپے رقیب څوک
زنځ د هجر به رم ورک نهٔ که له ځا نه    که بے یاره را ولی ما له طبیب څوک
ستا د شونډو له لذ ته که خبر شی    وابه نخلی په دهن نوم د ذبیب څوک
نکه زهٔ چه ستا هجران عاجز غریب کړم    په دا طور دِ هر ګز نهٔ شی غریب څوک
چه آند وه ځنې پا ځی هغه به نهٔ که    له اوله که خبر شی په نصیب څوک

د زغلو توان ئے هیڅ نشته دلبره !
ستا را هوره ستونه څوک، نجیب څوک!

(۲۴۷)

چه د کبر په توسن دلبر سواری که    معلوم شو زما د قتل تیاری که
څکه ناست وی زما یار همیشه سرو سترګے    چه مدام د عاشقانو خو نخواری که

دا له مانه دلربا نهٔ دے چه بیل شهٔ — دا م روح دے چه له تنه ویزا ری که
ستا وصال بے شبګیرئ موند ؤ نهٔ شی — د رسته شپه زا هلان څکه بیدارئ که
مخ دو نری که عاشق غواړی د خپل یار ته — دوه چینے دِ د چشما نو تل جاری که
که زهٔ ستا په عشق کښے مال نهٔ لوم خهٔ شو — د وصال عشاق په سرخوید اری که
خهٔ به یار زما وستا زارئ ته کوری — ملائک ئے چه په در ولا ړ زاری که

نجیبؔ ور وست محبت ترهیسے حد ده
چه مدام د سپی رقیب منتا زاری که

(۲۴۸)

خدایه! ورک کړے دخوبا نو د اسلوک — چه عشّاق لری په هجر کښے په دوک
دهجران په درد وغم کښے که باور کړے — همیشه وهم په ستوکو باندِ سوک
انتقام م له رقیبه یار وا نهٔ خِست — که کریوان م ورته تول که شوک شوک
عاشقان ئے څکه نهٔ ووځی له حکمه — چه خوبان کړهٔ خدائے دخپل حُسن ملوک
زمانه به دِ زر لاندِ که تو خا ورو — لوٹی مکړه دستار مندره په سوهوک
یارهیچرے راته نهٔ کوری په مهر — که له غمه ئے تل زا ړم کوک په کوک

په مشرئ کښے به هم تول نهٔ شی دلبره!
تیغ د هجر نجیبؔ هسے که تهوک تهوک

(۲۴۹)

دام د زلفو چه یار جوړ په رخساره که — زما زړهٔ ئے پکښے بند بیا دو باره که
دیار وصل داتمی به حاصل کا ندے — هر عاشق چه مام وننګ مخپل هواره که

هسې شان مجزښا ئست زما د يار د ے
چه قمرځ په يوه کو ته پا ر ه کړ

له سحابه نمو بيړ ون شته نه پوهيږم
دلربا که له حجابه مخ ښکا ر ه کړ

هسې شان وهم نارے زړه ستا په غم کښې
چه رعد په آسمان کښې چکا ر ه کړ

دهرچالاس و پښې نيسي دلبر غوارې
نجيب هسې عشق عاجز و بيچاره کړ

(۲۵۰)

توهرځيز چه شوه کمتره کښته زمکه
له گردش په آمانه شوه کو ر ه ځکه

چه له ښکليو د وفا طمع اُميد کړ ے
داله زانړي کټوري غوا ر ے هکه

ستا کوتا هو زلفو زړه ځکه زخمي کړم
چه تورماره چيچل بدکا ند ے ننګه

عاشقي مه کړه که در وند لکه حديد ے
په وار وار به تر ښړ ے شے خفيف سپکه

چه د ديده د قصاص نه شي دلبره!
ته زما له مرګه ځکه نکړ ے کوکه

ستا په ځيو په سره بن کښې صد هزار شته
بيهوده هُښبياره هُموه ثوک لافه نکه

مانجيب له جواب وکه چه کامګا ر وے
چه م سيال بل شاعر نشته بے ختکه

(۲۵۱)

ستا په عشق کښې تيره دُمه هسې زړ واک
چه هيڅي م دي د زړه د يني خوراک

نکه سوړے د نے کورے دلوبا يه !
زړه م هسې په هجران کښې دے چاک چاک

هسې سخته په ما را وسته ستا هجر
چه پيدا زما اَ ږدي شو په ځساک

ديار وصل به ها له پکښې ځائے ؤ که
که ته زړه کړے د ناموس له زنګه پاک

چه دعویٰ دمیل کا ندِ په خوبا نو — دهغهٔ له بې ننګئ وی څهٔ باک

څهٔ علاج به زهٔ نجیب کړم ستا دهجر
چه دهیڅ ورته نهٔ رسی ادراک

(۲۵۲)

چه بنا ئست ئې زیات تر حور و تر ملکه — دلربا زما بنشو نهٔ دے بې شکه

بیهوشی له درد و غمه آزادی ده — ساقی راکړه ډک شو ندو پیاله ډکه

چه په مینه کښې قرار و آرام غواړے — معلوم شو چه ئې کم عقل ترکو د که

څکه هیڅ ئې ګیروی کوم صنمه — چه نیز هٔ ړم ستا د غم شوه په زړهٔ لکه

داد لیوَدے چه د زړهٔ په سو کو زی — راکوز شوے که آفتاب دے له فلکه

که و نور خلق ته یٔم ثقیل تر غره نو — دخپل یار ته یٔم عالمه سپک تر کګه

چه بے وصل د ژړوند طمع له نجیب کړے
بې اُو بو ګویا ژوند غواړے له سمکه

(۲۵۳)

که خوبان د کُل مخلوق څوک وما راکه — بې له تا پرآرام کله زړهٔ زما که

چه دعویٰ د محبت رښتونی که څوک — د مجنون په څیر دځانهٔ مسکن صحرا که

څکه شهٔ م زنګ زیړے د کوڼکو[1] طور — چه دِ مینې کړم بې آبه، بې خورا که

ستا له دره ځې تلهٔ زما محال دی — څو ژوندے یٔم په دُنیا نیم هلاکه

---

[1] اصل. کذا. غالبًا دا لفظ کونګو دے. یعنی کانګو. زعفران دے ۱۲

څکه شو ګل کبود د رنګه دلربا یه! — چه لوګے م د آه د دودمی تو افلاکه
دادلبر دے ګړندے دروَمی وکو رته — که ده سرو په رفتار چست وچالاکه
خوشحالی خوشی له مانه کنا ره شو — همیشه م سویکار دے له بخساکه

که ئے وګنډے د زلفو په تارونو
نجیب ناست دے ستا په عشق کښے سینه چاکه

(۲۵۴)

یار چه کینا ستن دسپی رقیب تو څنګ — ځکه ما وته کاته کاندِ په څنګ
چه خبر تمام جهان زما په حال شته — اوس به څه دستا له وینے کوم ننګ
ما خپل ځان درته هدف که دلربا یه! — که م وُلے د مژګانو په خدنګ
ځان دِ شمار د لیونیو په قطار که — څوک چه ستا وعاشقیٔ ته که آهنګ
په دماغ کښے له تا کله برابر وو — اورنګزیب وشاهجهان د تیمور ننګ
بادشاهان لاس په نامه ورته ولاړ وی — یاره! ستا د در چه وی ادنیٰ ملنګ
دیر عشاق ئے دی لخ وډی زه ورو ستے یم — چه تل واره خُله دے ستا د عشق نهنګ
په علاج ئے د جو رستن متحیر یم — چه م مات د زړه زجاج که د غم سنګ

زه نجیب خو ستا وصال غواړم صنمه!
بادشاهی م پکار نه ده د اورنګ

(۲۵۵)

چه په لار کښے راته پروت دی د رقیب سګ — ځکه زه د یار په لور درومم په تګ
دا ئے وُ ویه رنځ د هجر لا دوا دے — چه طبیب م کوے کښینو دے په رګ

که څوک جمع کُل ټکان که دد ے دهر　　نهٔ به وی پکښې رقیب غونډِ څوک ټک
ماچه وُجهینل ستالب، نهاتِ م تۀ وکړهٔ　　چه هرڅوک ژروی کنی غورزوی اک
ترتندی م څکه شنې لوخړے خیژ ی　　چه م پورے که هجران په زړکی اک
لویاوُتهٔ م ستا دمینې قرمبانئ لم　　دهجران لیوهٔ م مات که دزړهٔ مک

زهٔ نجیب له یاره څرنګه غافل شم
چه وَما وته نزدے دے تر شهرګ

(۲۵۶)

ستا په هجر کښې چه پایم بے وصا له　　په خپل ژوند پورے حیران یم زما لاله!
سمندرغونډِ م زیست وی په آتش کښې　　په هجران کښې م هیڅ مهٔ پوښته له حا له
زهٔ دیار په عاشقۍ کښې کن آخوښی یم　　سایه مهٔ کوه په ما د هما ئې با له
بل څهٔ نشے دے چه له تا به همسری که　　ښاپیرۍ چه ستا دحسن نهٔ ده سیا له
په هجران کښې خوشحالی له ما مهٔ غواړه　　کوم عاصی به په سقر کښې وی خوشحا له
دزړهٔ عقل ورسره مکړه دومبارهٔ!　　دا دُنیا ده په معنیٰ کښې ښځه زا له
چه هیڅی دژڼے عشاق ویرهٔ دِنهٔ شی　　علامت دِسرے چشمانے دی قتا له

چه آرام طلبی ئې په عاشقۍ کښې
تو نجیب په هیڅوک نهٔ دی اَبدا له

(۲۵۷)

که فریاد نکه جرس کرم تل تر تله　　یار وَما ته نظر نهٔ کانِ هیڅکله
که وصال دیار شیرین دے څوک ئې څهٔ که　　چه هجران ئې څنې تریخ دے پڅه سله

چې په خیږ دِ د رخسار دے دلو بایه ! محبت کرم په سمن له دے کبله

که نه نه وے زمانه زړه به لرغونچا څو دوه دیار خیال له ! په لیمو کښې مِ خمله

ستا بنا لُست به ترهمه وښکلو د وچند وی که څوک دوا ړه سره وُتلی په تله

یار له څهره راته لا نحم وُ نه کړه

مانجیب چه سپنیه خُله څنې غوښتله

۲۵۸

که خبر شی څوک زما له خوږه دِ له وابه لخلی په خُله نوم دعِشق هیڅکله

چه ستا مهر محبت پکښې مقام شه کباب طورَ ے سینه زما وُسو له

که نظیر دیار دمخ د زلفو غوا ړ ے وَالضُّحیٰ وَاللَّیلِ کوره یؤ تر مَبله

یا خوځان په خیږ د قیس پکښې خراب کړ ے یا خوعِشق د ښکلیو مه کړ ے له آد له

آباسین به ورته هیڅ شی ستا په غم کښې چه زما د اوښو سیند وَه وَهی چَپله

علامت ئے دلوګی رنګ د فلک دے چه په زړه مِ ده د هِجر لمبه بَله

څه ما نه به زړه له چا کوم صنمه ! چه نصیب مِ ستا بیلتون شه له آز له

که یار وُوینی خپل مخ په آئینه کښې آشفته به شی په ځان باندِ بخپله

هله پیسه به مُجیب له غمه خلاص شی

که جفا دِ په وَفا که خدائے مَبد له

۲۵۹

ستا رُخسار چه خدائے په مثل که د ګل ځکه زړه شوم پرشیدا لکه سلبل

نه چه زړه تنها په غم کښې د ستا ژاړ م ستا په غم کښې په ژړا دے جهان ګل

زما زړهٔ تا په مژګانو هسې ونیو ــ لکه ونیسی دُرّاج باز په منګل
بنفشه ده چه پرته ده په سمو نو ــ په رخسار دِ که پراته دی تور کاکل؟
بې له ما صادق عاشق په تا څوک نشته ــ که له ځان سره ته ادا کړې تا مل
که به رنګ مې پتنګ وی ور لوره بنائی ــ تاله نهٔ ښائی مهرویه مې پو ښل
د دُنیا له کُل اندوه به نجیب خلاص کړې
که ورنوش کړې د لوبا د شونډو مُل

(۲۶۰)

چه ترخو روپری زیات لرې جمال ــ څکه نهٔ لرې په دهر کښې څوک سیال
تر قیامته به پانهٔ سی دلربا یه! ــ څوک چه ماغوندې غمونه که پامال
په هجران کښې به ژوندې تر او سه نهٔ وُم ــ که اُمید نهٔ وې زما ستا د وصال
داد عیب دې چه وفا له هیچا نهٔ کړې ــ دلربا یه! که لرې دهر یې کمال
په را تلهٔ دِ دخط حسن لا افزون شهٔ ــ نهٔ چه مِهر د ښائست وکه زوال
عاشقان چه مې د لبو مومی شومی ــ لطو نهٔ که په ثواب و په وبال
دیوانه دی ستا په عشق کښې مجنون طور ــ دد ې دهر که ښناء دی که رجال
افلاطون که ارسطو که نور حکما دو ــ ستا په غم کښې وو د لبرهٔ! کل ابدال
دراستی دعوې دِ نهٔ کاندِ دلبره! ــ چه عاشق سانې په عشق کښې سرمال
زهٔ نجیب دِ په کمند دزلفو بند کړم ــ چه په میان کښې دِ دانه کیښو ده خال

(۲۶۱)

لکه نهٔ ې په ښائست کښې بې مثال ــ هسې زهٔ یم ستا په عشق کښې ذی کمال

مالہ دوا پرولاس پہ سوکوړہ دلربا یہ! ماپہ څۀ ویروے تۀ پہ سرومال؛
هسې شان رم پہ بارخوا ونښې دغم ځی تۀ بہ وائے دے باران دېښہ کال
کہ ابوعلیؔ سینا غونډِ هوښیار وی سناپہ عشق کښې بہ دلبره شی ابدال
داپہ تخت بانډِ بادشاه پہ عشق تن ناست دے کہ دِ ا یښې دجبین دپاسہ خال
ستاپہ هجرکښې تل ناست یم دلربایہ! بے قوتہ، بے طاقتہ، بے مجال

بے دلبره کہ آهن وی هم بہ موم شی
کہ نجیبؔ ورتہ بیان کړم دزړۀ حال

(۲۶۲)

درک لہ ماکۀ عاشقۀ هسې شان عقل نکہ نشتہ دلربا دحیوان عقل
چہ دعشق پہ کارکښې راشی، شی بے عقلہ کہ دے زیات تر درست جهان دلقمانؔ عقل
پہ لیدۀ دستا دمخ ورځنې ووزی پہ صورت کښې کہ هرڅو وی سلطانؔ عقل
ستا دعشق پہ لویہ لارے دلربا یہ! عاقبت رم بہ شی ستړے ستومان عقل
پہ جوار دعاشقۀ دیسا نۀ کہ کہ هرڅوساتم پہ څار پہ قربان عقل
کہ هرڅو زیرک ئۀ لاڅې کا ندے شی پہ کار دعاشقۀ کښې نادان عقل
دادروند بار دعاشقۀ څۀ هسې نۀ دے چہ ئے واخلی بے قوتہ ناتوان عقل

کہ برهم کۀ دنجیبؔ عقل عشق څۀ شو
چہ برهم کہ عاشقۀ دجهان عقل

(۲۶۳)

نادے ایښې دلربا پہ شونډو خال کہ ولاړ دے دَ مکے پہ دربلالؔ

ستا لبان د نورونبکلیو به څوک سم کا　　لری ډیر تفاوت لعل و کُتی لا ل

کتوری لکه ملک له زانړی غوا ړ م　　چه له یاره کوم زړه د بو سے سوا ل

هیڅ په تا رم قد رنشته دلربا یه !　　کړم باڼے کرړه ستا په عشق کښے سروما ل

چه د هجو نړے رنځ زما نصیب شه　　ځکه شوم په تن نړے لکه هلا ل

لکه ستا ملا ے ستر ګے دی دلبره !　　هسے زړه یم ستا په هجر کښے ملا ل

په هجران کښے به زړه خه خوښ وخورم　　په دوزخ کښے به وی کوم سړے خوشحا ل

چه دِ هیڅ آثر په ما نصیحت نه کا　　بیهوده مه کړه ناصحه! قیل وقا ل

چه ئے کا ندے افسانے خلق دلبره !
نجیب بیا موند ستا په عشق کښے دا کمال

(۲۶۴)

د وِصال جواب ئے زر راوړه رسوله!　　دیار غم کړم نهایت په زړه ملوله

ستا په عشق کښے چه واعظ که راته وعظ　　ګویا اَچوی د سیند دَ غه ته پو له

لیں له مو که هم، سړے نژ نه خلاصیږی　　په هرچا چه شی بلا د عشق نزو له

د وصال خوندرم هر ګز لید لے نه دے　　په تش خیال ئے همیشه ناست یم مشغوله

د شا هانو مرتبے ته نظر نه که　　چه د وصل مرتبه که څوک حصو له

ځان عاشق بولی اوډنا مونګ ته ګوری　　عاشقی دا هسے کله شی مجهو له

تل دِ ګوزی کناره له عا شقئ　　هر سړے چه ساتی ځان د زړه له نو له

له خوبانو چه وفا غوا ړے نجیبه !
ستا په غیر به هیڅوک نه وی نامعقو له

(۲۶۵)

که په وصل مِ خوشنود کاندِ جانان خپل
سروومال به هغه دم کړم تر قربان خپل

لکه کاندِ دوزخیان په جهنم کښې
په هجران کښې هسے رنګ کنړم ګذران خپل

تا دستړګو په فتنو عالم مفتون کړو
اوس تر غواړم دلربا هميشې امان خپل

په رقیب ئے څکه نه پیږ زو کوُم زه
چه ګنړم محشوقه دین وایمان خپل

ته به وائے چه ئے ښلے د زړهٔ خُون دے
چه په پانو دلبر سرهٔ کاندِ لبان خپل

دملک اژدسکا نو زیست محال دے
یاره؛ لوے کړه له څا نه رقیبان خپل

چه دزړهٔ وینے مِ څی هیش له ستړګو
څکه تل په وینو سور لرم ګریوان خپل

عاقبت به پکښې ړوب شم دلوبا یه؛
تاچه جوړ که ژړا نه چاه زنخدان خپل

ستا دمخ په بله شمعَ دلوبا یه؛
دپتنګ غوندِ پړ سیزوم نجیبؔ ځان خپل

(۲۶۶)

همیشه لکه مجنون خراب نراب یم
ستا په هجر کښې زهٔ هسے په عذا ب یم

یاره؛ څهٔ لاس د وصل وما را کړه
چه غرقاب دِ د غمو نو په ګرداب یم

هسے شان مِ له دمُو ستړګو او بنے لاړے
چه په سرئے په ګردش لکه حبا ب یم

هیڅ دسوال جواب طاقت مِ پاتې نه شو
په هجران کښې دِ زهٔ هسے رنګ بیتا ب یم

دهجران په سور انکار با ند ے دلبره؛
په ګدا زهیڅی په مثل دکبا ب یم

په دُنیا کښې به بل نه وی دلربایه؛
لکه زهٔ چه ستا په مینه کښې بے آ ب یم

دمُرده ؤ په حساب یم په باطن کښې
په ظاهر که د ژوندیو په حساب یم

دمُږګانو په ناوک م چه تل وُلی
ځکه رنګ نجیبؔ په خُون لکه خضاب یم

(۲۶۷)

دهجران په غم کښې هسې فریاد زهٔ کړم
چه کور کلې په فریاد بیدار اود ئې کړم

چه په ماباندِ خفه کاندِ دلربا که
بیهوده به له رقیبه خفه ما نهٔ کړم

آهن زړهٔ د دلربا پرِ نهٔ نرمیږی
په ژړا سره که سپین دواړه لیمهٔ کړم

ګاه کښې چه زهٔ د وصل طعام وُخوړم
هغه دم ئې په وزر د غم ستا نهٔ کړم

خوبرویان که په داعصر کښې بسیار دی
ولې زهٔ بې دلربا نور نښکلی څهٔ کړم

کشکی هُره خوږ وند ې وې په دُنیا کښې
چه لاسونه د رقیب په وینو سرُ کړم

نورعالم په صورت روغ خوشحاله ګرزی
زهٔ د هجر مرض وُرځ لکه دور مه کړم

چه هیڅ خوندم د وصال پکښې بیانهٔ موند
عاشقی به زهٔ نجیبؔ نوره وُنهٔ کړم

(۲۶۸)

که د زلفو په زنځیر دِ زهٔ اسیر یم
خوښ خورم یم دلربا نهٔ چه زهیر یم

ستاد عشق په کدا یئی کښې دلربا یه!
پروادار نهٔ د بادشاه نهٔ د وزیر یم

هم په داچه عشق پا یه لری بلند ه
ځکه زهٔ دستا دَمینې و ته خیر یم

د چیشمانو تاریکی زما بیدا شو ه
چه کتونې دِ وَهم ته په خیر خیر یم

ګوندِ وی چه م په حق کښې دُعاوُ که
په خدمت استاده ځکه دهر پیر یم

ملنګی ستاد دربار ما لره لبی د ه
بې پروا د بادشاهانو له سریر یم

په سبب د ستا د مینې زما حیا نه ! — آئینه غوندې صفا روشن ضمیر یم
ستا دغې د مصحف هسې عبارت دے — چې حیران ئې دلربا یه په تفسیر یم
چې ستا زلفې معطرې په لاس نسیم — غنی ځکه له مشکو، له عبیر یم
هسې شان دې یاره! ستا د بڼو غشي — چې ئې تللې له ګذاره سرو تیر یم
چې م خه خو تسلّه ورباندې کیږي — سامع ځکه د رباب د بم و زیر یم
زر و سیم نه کړم زه لکه کودرے — غنی هسې ستا د مینې په اکسیر یم
ځان خو ستا خاصه غلام کړم دلبره — که لا بېږ زه د ململو د حریر یم
د شعراؤ سرحلقه عبدالرحمن دے — زه نجیب د ده د شعر دامنګیر یم
چې ئې شعر لا مثل دے باندې بنا ئې — که رحمان وائي په شعر عالمګیر یم
د کامګاره دا بیهوده خبره کوره — چې وئیل که خان بادشاه زه ئې وزیر یم
ته خوشحال وه خه کامګار وه خه شعر — په احوال د کوښې کوښې زه خبیر یم
چې د شاه د غلام فرق نه شي کولے — حق حیران زه د کامګار په دا تقریر یم

زه نجیب د مېلتا نه په درد و غم کښې
لکه بوره همیشه د ځان په وِیر یم

(۲۶۹)

ستا ناسازے به دلبره! څو زغمه؟ — د غم پېټې به د څو په تندی وړمه؟
چې ښکاره په درست جهان ئې له خورشید شو — اوس به مینه له چا څرنګ پټومه؟
دیوانه چې دې په عشق کښې شوم دلبره! — مجنون طور دې شپې ځکه ښکلومه
یو ساعت چې له تا بیل شم ځان کندن کړم — تمام عمر بې تا څرنګ تیرومه؟

محبت دستا آتش دے دلربا یه ! — دا آتش زۀ په خاطر کښے ساتوٗمه
چوے نه چه له تطوره شے صنمه ! — ځان په خیر دسپیلنو درلوګوٗمه
خدائے دِما هسے احمق نۀ کړه دلبره! — چه چنار به ستا له قده سمهٗومه
تار د زلفو، دشکانو سوزن راکړه — چه پاره خاطر نجیب پرِوٗګنډمه

چه وَیار ته په کنځله نۀ قبلیږی
بیهوده سر نجیب څۀ له لوزوٗمه

(۲۷۰)

چه دِ لک دبڼو غشے په تیغ وُړم — ځان په وینو آلود ځکه پائے تو سروُړم
چه حجاج به هم په هیچا کړی نۀ وو — ستمونه ظلم هسے د دلبر وُړم
دفلک منجم دے ځکه کبود کړے — دآه دود چه له دهنه تل بدٗرګوُړم
چه دهمنۀ وی مشکل یار ته رسد دے — منتونه هوُره ځکه د دهبس وُړم
اوس دعار خبرے مۀ کوه وَما ته — چه څوګند زه محبت په خیږِمن وُړم
چه مدرک دِ نوربانۀ کړم دلوبا یه! — که باور کړے په خاطر کښے زۀ نیشتروُړم

چه نجیب ستا دلبانوځ دی څنبلی
زۀ په لاس کښے ورله ځکه دریت جګروُړم

(۲۷۱)

په ظاهر کښے که هوس ویا خندا کړم — څۀ شوتیخ دبیتانۀ باطن ۲ داکړم

---

له اصل :- کذا- بدر؟!

بهره مند که ستا په وصل شم صنمه! ‏ دا ورنګ و سلطنت وته به شا کړم
نور څهٔ نهٔ وه واړه عشق دآهو چشمو ‏ چه مجنون غونډې ئې سرتل په صحرا کړم
په الماس سره مې اوکاږه چشما نې ‏ که به تانه په بل شکلی بانډې وا کړم
په احوال مې څوک خبر نهٔ وو دلبره! ‏ محبت د اوس په درست جهان رسوا کړم
سن زر سل اووه اویا دے د لوبا یه! ‏ ستا په غم کښې چه نجیبؔ ثانی انشا کړم

تهٔ یوځل سم په رضا زما را نځلے
زهٔ نجیبؔ که همیشه دستا رضا کړم

(۲۷۲)

چه همیشه پرستا د هجر پیتې وړمه ‏ سر زانو څکه مدام پیوست لرمه
محلومیږی چه مې مینه په دروغ ده ‏ چه تر اوسه ستا په هجر کښې پا ته یمه
بیلتانهٔ مې زړهٔ ریش ریش که په کوکل کښې ‏ خدائے دِ راوله دخوږ خاطره همه!
همسے شان دِ قد قامت دے دلربا یه! ‏ چه دِ سروِ تر قد ده کج و خمه
رنځ د هجر همسے رنګ کړم زبون حاله ‏ چه اُمید مې دژوند نهٔ کیږی تردمه
په سقر کښې که له یاره هم آغوش یم ‏ دا سقر و ماته بهٔ دے تر ارمه
که مې پیری که مې پلوری هر چه کاندے ‏ زهٔ نجیبؔ د یار ته غُذر نهٔ لرمه

(۲۷۳)

زړهٔ مې وُچاوُ دستا له جوره له ستمه ‏ پس له دے مکره جفا نوره صنمه!
داد ه شمع په ظلمت کښې نهٔ پوهیږم ‏ که ستا ځے لیدل شی د زلفو له تورتمه[۱]

[۱] اصل کذا. دلته دالفظ هم بې مینې ورکوی. خو ظلمت په مقابله کښې "تورتم" هم کیدے شی ۱۲

ستا د هجر هسې سخت یم دې دلبره! خدائے دِ وُ ساتی مُسلم له د غمه یمه

هم په دا چه م ژوندون وِ ستا په عشق دے خدائے م مکړه د زړهٔ مینه له تا کمه

ستا په عشق کښې چه م نم له ستړکو د روي آیا سیند که خدائے پیدا له د غمه نمه

فقیری م ستا په عشق کښې سعادت ده هئ توبه م د شاهانو له حشمه

تهٔ به وائے چه کمان دے دلربایه!

د نجیبؔ ملا کړه ستا هجر هسې خمه

(۲۷۴)

په تیشه که سودوه نیم لکه فرهاد کړم دریښتنې مینې نوم به هله زباد کړم

ستا په در کښې رقیبان هزار پراته دی نهٔ پوهیږم زهٔ له کوم یوهٔ جهاد کړم

پس له دے به مینه وُنهٔ کړم هیچرے چه خبر زهٔ خدائے د هجر په فساد کړم

چه م یار خدائے پیدا کړے جفاکار دے بیهوده ور څخه طمع د مراد کړم

هیڅوک نشته چه له تا په حُسن سم شی که خوبان په یوځائے ټول د کُل عباد کړم

په دولت د ستا د عشق هسې غنی یم چه پروا نهٔ د خسروؔ نهٔ د قبادؔ کړم

نوم نشان م پاتے نهٔ شهٔ په جهان کښې غم د هجر کوره هسې بے بنیاد کړم

هله لیسه کوره حال د رقیبانو

که دِ چرے زهٔ نجیبؔ په وصل ښاد کړم

(۲۷۵)

چه زخمی دِ د چشمانو په خدنګ یم څکه درست د سالو طور په خون رنګ یم

مګو خدائے م یونس طور تر بیړون که چه خوړلے د هجران عظیم نهنګ یم

هم په دا چه درد و غم پرېکے مو مې | سامح څکه درباب وُ نے و چنګ یم
ستا ددر په خاورو خوبنی یم تل تر تله | بے پروا له بادشاهئ د اورنګ یم
خلاصید ن م بے له مرګه تر دُشوار دی | لاندې دهیے ستا دهجو تر قلنګ یم
په سبب د عاشقئ شاهجهان شوم | کوچه زهٔ دستا د در اَدنیٰ ملنګ یم

څکه کیږی افسانے زما د مینے
چه سوخته د په رُخسار رلکه پتنګ یم

(۲۷۶)

چه په غاړه م شوه ستا د زلفو لومه | د خلاصی اُمید زما دے اوس معدُومه
ستا په طور بل خوبروئ نشته دلبره! | که څوک اولټوی ملک تر شام و رومه
په ظاهر له خلقه نا ست خندا هوس کړم | کوم ژړا لکه بد نامه تل مکتومه
صد هزار رحمله توبه زما له عشقه | چه سختی شوه ستا دهجر را معلومه
د دے دهر له عالمه کو بنه کر زم | دا خبره را شه زده کړه تهٔ له بُومه
دا دی غایب دستا په څُله کیږی نهٔ پوهیږم | په سرهٔ تا رکه مرغارے دی منظومه
بد نجئ زما سخت که تر فنوّ لا دهٔ | دآشنا خاطر که نرم وُه ترموم مه

غم دهجر خوار و زار کړم نهٔ پوهیږم
چه به دا خواری نجیبؔ پیځم ترکومه

(۲۷۷)

خو چه ستا د محبت په سودائی درد شوم | همدم له نکو نامه زهٔ بیوںشوم
کشتکے مهٔ وے پراُخته سراسر غم دے | چه خبر د عاشقئ په مضمون شوم

چې مې دُ وینې هرڅوک کوتې په خُله که
دهجران په رنځ کښې لږ هسې زبون شوم

که نڅوا په قد الف ووم به ئې څه کړم
اوس په غم کښې دلربا په څیر دلون شوم

را په غاړه دِ د زلفو زنځیر نۀ کړ ؛
که په عِشق دِ دلبره ؛ زمجنون شوم

چې په دارنګ مفتون چالیدلے نۀ وی
ستا د سترګو په فتنو هسې مفتون شوم

د وَتو اُمیدِ م نۀ شي تر دلبره ؛
هسې غرق نجیب د هجر په سیحون شوم

(۲۷۸)

چې پتنګ غوندِ په اور د عشق ښاد شوم
آشنا نې مې په هر ځائې شي ځکه یاد شوم

هسې شان دولت مې بیا موندلو ستا په عشق کښې
چې غني له بادشاهۍ د قباد شوم

نور و واړ و عاشقا نو مراد بیا موند
خو یو زۀ ستا په عشق کښې نامراد شوم

راضي من ئې بیا په بند یم دلربا یه !
ستا د زلفو له زنځیره چې آزاد شوم

محبت مې ستا مُرشد دے زما جانه !
بے پروا د مُرشد انو له ارشاد شوم

سیّده ! یو غم تللے نۀ وي دویم راشي
زۀ خسته نجیب یو څۀ د غم بلا د شوم

(۲۷۹)

چې د هجر په سور و دِ زۀ تاراج کړم
راته وایه اوس په څه د مینې راج کړم ؟

چې به تل زما په دربا ندِ ولاړ وو
زمانې و هغه چا وَته محتاج کړم

سوو مال مې دوا رۀ و رکړۀ پوره نۀ شۀ
اوس په څۀ باندِ پوره د هجر باج کړم ؟

چې بلند آوانه اوکاږم نه هیریږم
رنځ د هجر هسې زنګ ضعیف مزاج کړم

ستا رخسار که څراغ سراج، زه پروانه یم — عاقبت به ځان سوخته په دا سراج کړم
که تهمت م ستا په عشق کښې په سر تاج شه — په دا تاج بانډ دلبره ابتهاج کړم
مګر فضل د خدائ چه ځنې ووز م — هسې شان د ډوب د غم بحرِ مواج کړم
یار چه زلفې کړې مهار زما د پوزې
زه نجیبؔ ور پسې تلنه لاعلاج کړم

(۲۸۰)

هسې رنګ عاجز د ستا جور و ستم کړم — چه په قد ئې لکه ستا ابروان خم کړم
که کایل د شوم دستر کو په تیغ خوښ یم — خدائ د نه که چه د دې زخم مرهم کړم
یار له نازه هرګز نه ګوري وما ته — که زاري وعاجزي ورته هر دم کړم
د میږي په دود پایمال شوم تر د لاند — ستا د هجر فیل چه لاند تر قدم کړم
که نور څوک د ستا په وصل خوشنود ګوري — خوشنود ي زه دلربا په ستا په غم کړم
عالمان به ئې له لوستو تول عاجز شي — د زړه حال که په کاغذ ورته رقم کړم
ستا په عشق کښې قسم راکړه ما نجیبؔ ته
که بې تا به زه نظر په جام د جم کړم

(۲۸۱)

هله پسه به د وصل ګفتګو ئې کړم — که زه ستا د رقیبانو و ینې تو ئې کړم
دوه کږدم دي په لشوم سوغوینه — چه په زړه کښې نقش خیال ستا د ابرو ئې کړم
د رنځور په آه فریاد د زړه د مه شي — ځکه زه ستا په هجران کښې های وهو ئې کړم
که شاهي د ګل مخلوق وما را که — پر به کله ستا د زلفو وریږ مو ئې کړم

خاکوونې که پیاړو کاندِ نور خلق — زه په زیړه خاکوونې دیار دکوڅې کړم
بورا طور سر وهلې همیشې کوزم — لا په کله کل زه ستا دعنا د بوڅې کړم
سو وِ قد دیار پر لا تا زکې موسی — له چپشانو چه جاري د اوښو جوڅې کړم
چاسوراغ د اَشنا را نه که حیران یم
زه نجیب ور پسې تلنه په کوم سوڅې کړم؛

(۲۸۲)

تل تر تله خپسوا لینې په زنگون یم — ستا په هجر کښې اَشنا هسې محزون یم
غولاس واتګړې خانه زما رشو اردې — غوق په لاڅې کښې دهجران تر ملا تړون یم
دصحت اُمید م نه شي بې وصا له — مبتلا چه دِ دهجر په طاعون یم
که د وصل دُر په ما کښې پریوزي سنا ئي — چه صدف غوندِ پاره تمام لړمون یم
که د لبرم زیات په حُسن تر لیلا دے — زه په مینه کښې تیرشوے تر مجنون یم
ستا په عشق کښې تل تر تله دلربا یه؛ — فارغ ناست دپر دو خپلو له ګلون یم
نجیب پُر لوم دامن په دُر د اوښو
بې پروا له خزانو د افریدون یم

(۲۸۳)

که په مینه کښې دشکایو خوار و زار شوم — باندِ خونې یم چه مدنګ د دربار شوم
دے بې له ماهوګز په هیڅا مه کسې د — چه دیار له جور و ظلمه خبردار شوم

---

له اصل: کذا (سراغ) ؟!

چې یاره ژوندے پاتې په هجران کښې — له دے خپله محبته شرمسار شوم

د خلاصۍ اُمید مې هیڅ ورځې نه شی — ستا د زلفو په ځنځیل هسے گرفتار شوم

چا وے یار خو ځه وی وصل نو رځه نه وو — بے تعطیله ئې په خپسو خو بیدار شوم

ځکه زنگ آواز مې ځکه تر خانه ځیږی — چه د غم په تیو سوڅے په زړه ئې دار شوم

لا مې اوس ریښتنے مینه شوه ترسره

چه منصور غوندې نجیبه په سر د دار شوم

(۲۸۴)

زړه چه آشفته په تا جانان لرم — څه پروا به زه د سرو سامان لرم

ستا له درد و غمه چه ژړا کوم — ډک لمن تل له دُر مرجان لرم

باغ چه دې د لځ په رقیب زاغ وسپارځه — ځکه زه بلبل غوندې افغان لرم

ځکه مې خوناب د روبی له دواړو سترګو — رنګ چه په زړه تیو ستا د سترګان لرم

خیال مې ستا د سترګو په کشتۍ کښې پروت دے — تن که ډوب د اوښو په طوفان لرم

یار که د خپل وصل بها غواړی له ما — نور را ځه هیڅ نشته خو ځان لرم

بس که په وصال یې اوس خوشنود کړه یاره

نور د هجر کله نجیبه توان لرم

(۲۸۵)

جفا جور دې په زړه هسے خسته کړم — چه ئې مور له عاشق په هسته کړم

دغه وار ده دے سبب د ستا د هجر — چه وهنه تل د سر په دود سته کړم

په بوده د سرو مال چه پوره نه شوه — اوس پوره په قدم د مینې تنسته کړم

ستا په مینه محبت کښې دلربا یه! / لکه قیس گوشه له خلقه کښیناسته کړم
اوس د وصل مومیائی را له لازم ده / چه په کانړي دِ د هجر شکسته کړم
ستا په هجر کښې زما ماه تمامه / جرس طور فریاد و نه پیوسته کړم

ځکه زه په هر طرف ور کښې گرزم
چه نجیب مین باری په سبائسته کړم

(۲۸۶)

چه نظر ستا په رخساری سپین لرم / استغنا ځکه له یا سمین لرم
قدم دهجرے له کبره بانډ نه بدی / که تل آس یارته دستو گوزین لرم
چرم وُلی تل په غشیو د مژگانو / صورت درست لکه سالو زنگین لرم
تو نظرم کیخسرو کمتر غلام دے / آستانه چه دِ د سر بالین لرم
لکه نه د فلک وینې دلربا یه! / ستا له غمه خاطر هسې شئین لرم
چه د زړه صفائی نه لرم عالمه! / په راخه شو کم لباس پشمین لرم
عاقبت به رِم مجنون سو په کوهسار که / زه په خپل محبت دا یقین لرم

همیشه چه ستا صفت کوم صنمه!
نه نجیب ځکه گفتار رشتین لرم

(۲۸۷)

سپے رقیب چه ستا په در کښې گداوینم / که باور کړے په فردوس کښې تو ساوینم
داورنگ په مسند و نو پورے خاندی / ستا په عشق کښې جانشینِ بوریا وینم
داده شمع په فانوس کښې چه ځلیږی / په حجاب کښې که رخسار د آشنا وینم

خدا خوړاکړه چه په څنبل ئے لایعقل شم | ساقی! ستا په لاس د میو مینا وینم
زعفرانی څهره زما پکښے شکاریږی | آئینه دِ د مخ هسے صفا وینم
هسے شان حُسن لرے زما دلبره! | چه محتاج دِ انبیاء د لقا وینم
ما نجیب دِ خدائے په دوار وستو کوکورکه
چه پړ سنکلی دلربا یه! بے تا وینم

(۲۸۸)

داقعهٔ شور دے چه ئے په دور د قمر وینم[1] | اطواف واړه ډک په شور و په شر وینم
نهٔ یو ورور محبت کا نڼ په بل باندِ | نهٔ هیڅ مینه د پدر په پسر وینم
لونړه کانڼ جنګ جدل همیشه مینډ | خامن واړه بد خواهان د پدر وینم
تازی آس ولیږ ده تر کټے لانڼ | زرین طوق ادس په غاړه کښے خر وینم
چه کل خلقو به خندا پورے کو له | په تندی د هغو تاج وافسر وینم
چه ئے پلار وهم نیکونه امیران وو | دلو کو کیږے د هغو په سر وینم
داوڕه وعظ د حافظ دروم نیکی کړه | چه دا پند بهتر تر کنج و گهر وینم
چه ئے څوک په عقل سیال نهٔ دی نجیبه!
نوکوان ئے وکم عقل، اکثر وینم

(۲۸۹)

چه له تا نه جدا شوے دلارام یم | که باور کړے سیماب غوندے بے آرام یم

---

[1] دا غزل داکیډیمی نسخے په حاشیه لیکلے دے، دا د حافظ شیرازی د غزل ترجمه ده چه شعر یـئ دا دے کـه د ورو قمری بینم ..... الخ ۱۲!

چه کوغالے ستا د سپیو م نصیب شهٔ اوس دلبره مستغنی د جم له جا م یم
څکه ورسیدهٔ سو م تر فلکه ! چه خپلے ستا د عشق پر بلند بام یم
ستاله جوره چه ژړا کوم صنمه ! معلوم شو چه دِ په مینه کښے لاخام یم
ستا د مینے په سبب شاجهان شوم اوکه نهٔ وی زهٔ خو ستا کمتر غلام یم
سعادت د دوارو کونو دے دلبره ! ستا په عشق کښے که بد نام یم که نیکنام یم
سیاه کیسی زما څکه دواړه سپین شو چه گویان لکه سحاب علی الدوام یم

اُمید وار عاصی نجیبؔ د مغفرت یم
چه اُمت د محمدؐ خیر الانام یم

(۲۹۰)

آشفته چه په رُخسار د جانانه یم پرسوخته څکه په شان د پروانه یم
سر یکارم همیشه وی له غمو نو له خوشئ له هوسه بیگانه یم
خرابات م دے وطن پکښے ساکن یم د ساقی له لاسه مے ځنبم رندانه یم
تهٔ کوه خپله شیخی له ما دِ څهٔ دی شیخه! خوبنی زهٔ درباب په ترانه یم
لا به کله شم یوسف عزیز د مِصر چه په چاهِ دِ دزنخ بند بیخانه یم

چه دیار د ہجرِ و غمونو دیوانه کړم
نجیبؔ څکه له وحشیو همخانه یم

(۲۹۱)

که په غشیو د نظر د خوبئ په زړه یم بانډِ خوبنی یم په طلب د مرهم نهٔ یم
لکه ستا د حُسن سیال نشته دلبره په عشاقو کښے بے مثل پیدا زهٔ یم

چه پیچم تل زحمتونه راحت نشته — په هجران کښې راضي من په دم خاته یم
که وَ بل طرف ته کوزم په پښو باندې — په چشما نوستا وَلور وَته په تانه یم
د بدنامۍ په غیرپته خله زړاکړم — په داغځه شوکه ظاهر خندان په خله یم

زهٔ نجیب تر خلاصې نهٔ غوارم دلبرهٔ!
بندیوان دِ د زلفینو په حیل بنهٔ یم

(۲۹۲)

چه فریاد که ستا دهجر له اَلَمه — هغه څوک صادق عاشق نهٔ دے صنمه!
په ذره زړم ژوند پکار نهٔ دے مرګ غوارم — یو ساعت چه شم فارغ د ستا له غمه
درسته شپه به له ګل رخو واصل اوسے — که حاصله شبګیرئ کړے له شبنمه
هر یو تار ئې موڼې واڼي د هجر — راشه واوره د رباب له زیر و بمه
بے له وصله قراري له ماممهٔ غواړه — دمّا هي کله قرار کیږي بے یمه
که هر څو سم قامتي لري صنمه! — سهي سرو په قد نهٔ ده له تا سمه
ستا له خیاله مشغولا کوم مهرویه! — چه کوښه زم نیولے له ما لمه
هسې شان ستمګار یار زما نصیب شهٔ — چه حجاج ئې امان غواړي له ستمه

ستا په غم کښې د نجیب له دواړو سترګو
جوئ دا او سبو همیش ځي د زرهٔ له یمه

(۲۹۳)

ستا و مخ ته چه دلبره چشمان نیسم — ګویا کسي زهٔ په نمر درخشان نیسم
ستا په عشق کښې چه آرام غوارم صنمه — وَ قمر دَ ته جامه د کتان نیسم

وگوی دا بانڊِ ځکه دغَم کانړی ی ؛     چه په سرتل ستا دهجر آسمان نیسم
سیند دا وښو بانڊِ کله منع کیږ ی     که وستوګو ته هرڅو انګُستنان نیسم
دَا وموشو دوپیړ وے دے ورانیږی     په خُله څونګ سره لبان دجانانن نیسم
دا منره دسمرقند دکه نهٔ پوهیږم     که په خُله کښے زهٔ دیار زنخدان نیسم

دلبانو جړی راکړه دلوبا یه ؛
ستا د زلفو چه نجیب ښهاران نیسم

(۲۹۴)

گرچه ناسته د زمرو په حضُیر کړم     عاشقیٔ بلند پایه تر عالمګیر کړم
ځکه تد کوم زګیروی دزړهٔ له سره     چه زخمی دِ دلربا د بنړو تیر کړم
په ظاهر له خلقونا ست یم ستا په غم کښے     په باطن کښے تل تو تله دځان ویر کړم
له ژوند وته مِ مرګ خوښ په هزار ځوے     جدائی هسے په ځان پورے زهیر کړم
خیال دځ دِچه مِ مَل وی لپس له مرګه     بے پروائے له منکرو له نکیر کړم
دلاله سیاه داغونه به دِ هیر شی     که ښکاره درته داغونه دضمیر کړم
هسے حسُن دلربا لری عالمه !     دروغژن به شم که حوره لے نظیر کړم
لا دیوش کاله مِ دغمو پوره نهٔ دی     بیا نجیب ستا دهجران غمو نو پیر کړم

(۲۹۵)

دارا غے زما صنم، داکه دے آفتاب دوئم     داکه دے آفتاب دوئم دارا غے زما صنم

---

له پوزے ۱۲

ستا د هجر درد و غم وُسیتم له کاره زه
وُسیتم له کاره زه ستا د هجر درد و غم

مه کوه یاره! نور ستم، هیڅ طاقت یې نه لرم
هیڅ طاقت یې نه لرم، مکوه یاره! نور ستم

ژارم چه پر زړه هر دم، ستوري م شو ځکه سپینې
ستوري م شو ځکه سپینې، ژارم چه پر زړه هر دم

دې کچنار هر خوسم، ستا له قده دې خجل
ستا له قده دې خجل، دې که چنار هر خوسم

کله پر یار ږدي قدم، ځان که ورته زمکه کړم
ځان که ورته زمکه کړم، کله پر یار ږدي قدم

ځي چې م له ستوګو نم، شم به پکښې زه غرقاب
شم به پکښې زه غرقاب، ځي م چه له ستوګو نم

شته تمام جهان تورتم، زلفې کړه له مخه لرې
زلفې کړه له مخه لرې، شته تمام جهان تورتم

کله به شم خوښ خورم، زه نجیب د وصل ستا
زه نجیب په وصل ستا، کله به شم خوښ خورم

(۲۹۶)

په هجران کښې د صنم، فریاد و نه کړم هر دم
فریاد و نه کړم هر دم په هجران کښې د صنم

تل م ځي له ستوګو نم، د ناسور په څیرګه کوري
د ناسور په څیرګه کوري، تل م ځي له ستوګو نم

چه د لب شبنم په فم، راته هیڅ شهد و شکر شي
راته هیڅ شهد و شکر شي، چه د لب شبنم په فم

د هغو به وي څه غم، چه له تا سره واصل وي
چه له تا سره واصل وي، د هغو به وي څه غم

په معنی عیسی دم، ستا وصال دې دلربایه
ستا وصال دې دلربایه! په معنی عیسی دم

جوس طوره صبح دم، په نار و سو مدام یم
په نار و سو مدام یم، جوس طوره صبح دم

دلربا څه دی آدم، ملائک د ثاني نه دي
ملائک د ثاني نه دي، دلربا څه دی آدم

دا اوبه دي د زمزم، که د لاړې دي دلبره
که د لاړې دي دلبره، دا اوبه دي د زمزم

که پر یږدي دلبر قدم، دوه چشمان به نجیب فرش کړم
دوه چشمان به نجیب فرش کړم، که پر یږدي دلبر قدم

(۲۹۷)

که بې نازهٔ نعمتونه د نِعمَ خورم | باوَداوکړهٔ دلو باپه ! کویاسَم خورم
وُبه ولم سپي رقیب د آه په غشی | ستاپه غم کښې چه لیندهٔ غونډِ تل خَم خورم
یوغمخور په درست جهان کښې زما نشته | اوزهٔ کوره تل غمونه دعالَم خورم
زړهٔ م څکه بادام طوره درست سُوردَی | د نیړو غشی چه تل پرِ د صنم خورم
نورخوراک نشته زما دستا په عشق کښې | بې له وینو دځګرچه ئې هر دم خورم
هسې شان کاذب عاشق نهٔ یم دلبرهٔ! | ستا په عشق کښې چه دننګو دنام غم خورم

بې له تا به په فردوس کښې هم خوښ نهٔ شم
زهٔ نجیب دستا په سر باندِ قسم خورم

(۲۹۸)

رقیب که په مانا سازې صنم هُم | نهٔ کروهیرې ی په مسجد په حَرَم هَم
هسې داغ م هجرا ینې په خاطر دې | چه پرِ لاس د طبیب سوزی مَرهم هُم
که وفا واسره کړې مهربانی ده | اوکه نهٔ وی خوښی یم ستا په سِتم هُم
که هوښیار ئې زړهٔ تر و له هیچا مکړه | دا آواز درباب زیرکاندِ بَم هُم
رقیب هسې دلوبا زمابد راه کهٔ | چه م نوم هیچرې نا خلی په قَلَم هُم
له کوڅې سره دستا زما خیا نانه ! | برابر نهٔ کړم خُلد څهٔ نِعَم هُم
که بې تا ئې څوک وصارا که دلبره ! | وابه نهٔ خلم دشاهانو حَشم هُم

که نجیب ستا د هجران درد و اَلَم کښې
لاس به ستړې شی دلبره ! قلم هُم

(۲۹۹)

چه دلبر رقیب را درومي سم په سم — معلومیږي راځي ما له غم په غم
عاقبت به پکښې غرق شم معلومیږي — چه زه او ښه په مخ درومي دم په دم
هیڅ پوښتنه له ما نه کوه صنمه! — ستا هجران که زما حال بوهم درهم
اوس به څرنګ راز د مینې پټ پنهم کړم — چه زه کور په کور قصې شي چم په چم

سرومال دې صدقه شه له ریباره
که نجیب که له دلبره فنم په فنم

(۳۰۰)

برا به شپه له دلبره ځله په ځله وم — ځله په ځله صد په صد پرې ترې اوده وم
رابیدار چه شوم له خوبه که کاته کړم — دلبره نه وه پاتې شوې تنها زه وم
حق حیران په کټ کښې کښېناستم له غمه — له چشمانو باریده که اوره تم
نه خبر وم له جهانه نه له ځانه — لکه مې صد ساله ښځلې په خوب نه وم
چه نه کوم ړشوم اځ نه پرند شوم زه له غمه — معلومیږي چه سرې نه دم نور ځه وم
د هغه ساعت پوښتنه که له ما کړې — د بادام په څیر سوري سوري په زړه وم

که مرور په هغه دردو الم کښې
زه خسته نجیب صادق عاشق هاله وم

(۳۰۱)

همره کښېنو عشق په ما انبار د غم — چه دې کم ترې د کل خلق بار د غم
د خزان خوار ګوزی په خاطر کښې — چه بلبل په باغ کښې که چغار د غم

چې راز د عشق ښکاره لکه منصور کړ ځکه دُ دراوه شه ما ته دار د غم

دے د هر دِ خوښی ګلونه څه کړم همیشه چه ورسره دے خار د غم

د خوښی یاران ډیر دی په دُنیا کښې ډیر م اولتاوه لښته یار د غم

کړم خدائے ورځنې خلاص که بختور یم وازه ځله راپسے زغلی مار د غم

زه نجیب ئے په دخول باندِ پښیمان شوم

چه ستا عِشق دے سراسر بازار د غم

(۳۰۲)

ستاو مخ ته دلربا یه چه نګاه کړم مقرر خذف په زړه کښې مهر و ماه کړم

فلک پاس له تاوه وُسوزی کیږ شی ستا په هجر کښې دلبره چه زه آه کړم

که هیڅ مال دولت نه لرم زه څه شو عاشقئ دِ په پایه بلند تو شاه کړم

نه ویښیږی پر دلبر د ناز له خوبه که فریاد لکه جرس په صبحګاه کړم

چه دِ صبر تو ښه هیڅ راځمه لښته یاره؛ قطع په څه ستا د مینے راه کړم

چه او نه خته دده په بیلتانه کښے

زه نجیب خجل تر یاره پورے ساه کړم

(۳۰۳)

څو چه نوش د ستا د سرو شونډو صهبا نکړم سو به ستا له آستانے نه جدا نکړم

بلا داده چه دلبرے منکیری که کله زه در قیبا نو پروا نکړم

عاشقی رم په رښتیا نه ده دروغ ده څو چه ځان په ځیر د قیس رسوا نکړم

کړم بوځل ستا زلفینې په لاس کښیوزی څو ژوندے یم یاد به نوم د خطا نکړم

ستا د رپه کدا بېن کښې دلربا یه! | هیڅ پروا داورنګ زیب د دارا نکړم
چه ئې ووب په غم د هجر کړم دلبره! | ستا په هجر کښې به څونګ ژړا نکړم
کړم لاس دخدائے په چار وڅخه وسپېږی | میل به ستا بیږ دن له دِله بتا نکړم

چه په تیغ ستا د چشما نو د ے صنمه!
نجیب ځکه د د ے زخم دوا نکړم

(۳۰۴)

که یوځل له تا دلبره! همکنار شم[1] | په عالم کښې به درست عمو با وقار شم
چار وتونی زه ترکله یم ناصحه! | تو مجنونه که په مینه کښې لاخوار شم
چه وایه م د زړه راز و سپی رقیب ته | سزاوار یم که منصور غوندې په دار شم
بادشاهی دا ورنګ زیب م پکار نه وی | چه دستا د در له سپیونه زه څار شم
ځان به مر په تیغ ندئ کړم دلربایه | که دستا له محبته زه ووزګار شم
چه له یاره سره هم ژړا فریاد کړم | تر و هلم بحال څه شي چه بے یار شم
بے آلمه بله هیڅ سودا و سنکړم | زه چه کله د ستا دحسن په بازار شم

چه په هجر کښې رِمړ نه شوم دلبره!
زه نجیب له خپله عشقه شرمسار شم

(۳۰۵)

چه له تا نه جدا شوے دلربا یم | سحاب طور هیش ځکه به ژړا یم

---

[1] دا غزل د ب،م نسخه کښې نشته دی!

څکه پروت یم کنارہ خاموش دلبره! — چه مګ نقوش د سرو شونډو په صهبا یم

وسوزش ته رم نظر کړه لکه شمع — په داخځه شو که ظاهر مجلس آرا یم

چه خوشبویه زلفې ستا شته دلربا یه! — د خطا ختن له مشکو بې پروا یم

چه نه مرم نه رم صحت ور ځنې کیږي — په سخت رنځ همیشه د هجر مبتلا یم

بیل له تا نه ستا په هجر کښې صنمه! — لکه کب تويیب وموک وته بې ما یم

پریشاني رم ستا د زلفو نصیب نه ده — که شانه غونډې په زړه دوتا دوتا یم

نجیب خوښ یم ستا د در په ملنګۍ کښې
بې پروا له سلطنته د دارا یم

(۳۰۶)

چه مدام پرستا وځم ته په کاته یم — کم دیده په دوه چشمانو څکه زه یم

له حبابه د بقا په اقتضاء یم — له دلبره چه د وصل په غوښتنه یم

ستا هجران د نوح له قومه زه محسوب کړم — همیشه چه غرق دا د ښو په اوبه یم

په چشمانو چه بې تا وبل ته ګورم — زلیخه غوندې خوښي ادس په وکښه یم

بیو نه تله رم د پتنګ غوندې د شوار دی — څو د سوی د رخسار په شمع نه یم

که د یار له لاسه غشی د خدنګ دی
زه نجیب یې قبلوُنې په لیمه یم

(۳۰۷)

هم په دا چه زه ملنګ دیار د در یم — مستغني له بادشاهۍ د سکندر یم

که د سینه محبت آتش وه څه شو — په دا اور کښې خوښ په څیر د سمندر یم

پرکتوزلوم داونبو په درد و نو — ستا د مینې په تخت ناست شاقیصر یم
مال م تش دے که باورکوے دلبره! — ستا په مینه کښې آرکله زهٔ په سر یم
ستا په مینه محبت کښې دلربا یه! — د مجنون په څیر له کل عقل بد ر یم
ترنظره م شاهان کل گدایان دی — غزا وُ شوه که مسکین د قلندر یم

ما نجیب له اوس د شونډو دجرئ راکړه
چه څوړلے د د زلفو په اژدر یم

(۳۰۸)

زهٔ به څرنګ شکوه نهٔ کړم له کوردونه — چه زنبارے کړه په ما غم د دردو نه
همیشه چه جفا کاندِ په عشنا قو — خدا یه اورک کړے دخوبانو رادودونه
ساقی! راکړه اوس شراب مستی لازم دۀ — په لاس وُنیوه رما نو سرودونه
د وصال روېمال اوس راکړه که به نښه کړ — ستا هجران م په مخ پرے یاسته کوردونه
عاشقان لے بے حسابه شهیدان کړه — چه خوبان که تل په ستوکو ننبږ دونه

په آسمان کښې به زهره په نڅا کړه شی
که نے شی ترغوږ نجیبه ستا فردونه

(۳۰۹)

زړه له مایا ریو رهیی تشا په زوت نهیں — دابے رحمی کوره چه لانې دکهلاوت نهیں
ناستا یم وُچ شونډې په هجران کښے سیه تدر — آب راته د وصل دلبو کیو ن پلاوت نهیں

---

له ۱ صل کینو ۲!

وې که عمل یار د رقیب په قول پوه شوم — تله چه په شتاب که میری بات سنا وت نهین

بې له ما مصری به یار سا نه موږي بل هیڅوک — ولې دنیا ئست زکوة دما د لاوت نهین

جو ړې مار نیزه کړې د مژګانو د خولا دو — تل یم پر وهي را ته ګنه بتلاوت نهین

نشته دکافرو د مصحف مناسبت هیڅ — ولې له رقیبه دلبر مې چهپاوت نهین

تل یم کنډ ولې ورته نیولې دې د ستر کو — څه کړم یکښې خبر یار د حسن یاوت نهین

ناست وي تل تو تله له رقیبه هم آغوشه — هیڅ مې له ما سره دلبر ښکاوت نهین

خوشې چه دلربا کړم د چشمانو په تیغ باندې — اوس پرې د خپل وصل مرهم کیږي لګاوت نهین

ستا د دې غزل دې دا جواب محي الدینه! — غواړم مې دلبو مغبچه دلاوت نهین

څه لره ناصحه! ما نجیب ته نصیحت کړې
مینه د خوبانو مې له زړه جاوت نهین

(۳۱۰)

چه همیش دربانږ دې بالا نشین — څکه درې دلبر له ما نه دل و دین

چه همیش مې نه خوناب د روي له ستر کو — همېشان مې ساله غمه شته زړه خوږین

د نور سنګلیو لبان ستا لب ته نه رسي — کوم سرې به سم که زهر و انګبین

تل تو تله به شي خلاص له اضطرابه — څوک چه ځان که د زمین غونډ کمین

همیش ستا په غم کښې مې وهي دلبره! — دا فلک څکه همیش لیدل شي شین

په سبب د د سپین مخ د تورو زلفو — محبت کړم دلربا په تور و سپین

ک۱ اصل: میربات ک۲ اصل چپاوت ک۳ اصل: بتهلاوت ک۴ اصل: کینو

زهٔ نجیب چه کړم دعا د یار په عمر
ملائک را سره کړ شی په آمین

(۳۱۱)

چه مهرو یه په منځ دوهی خالونه — له عشاقو لوټه که د اسرو مالونه
په نکهت ئې تمامی جهان خوشبوئ شی — چه ئې والوزی په زلفو شمالونه
که ئې څوک دعاشقۍ د ته هوس کا — رباب طور به تل مومی کو شمالونه
که بانڑهٔ د دوئ تیرونه لاجبری دی — دعشاقو دی سینې ورته ډالونه
تکه ونیسی خروس څوک په اوربا ندی — هسې شان زما هجران وسوبالونه
هیڅ جواب دیوهٔ سوال هم ورته نهٔ کا — که عشاق ورته کوی هزار سوالونه
دسیاه چشمانو حال به ئې څهٔ وایم — چه همیش ئې په غمزو که قتالونه
نهٔ ئې شوم نهٔ ئې ویره شی له خدا یه — همیش اخلی دعشاقو وبالونه
که نهٔ حال دنجیب واوری په عشق کښې
فراموش به کړې دقیس فرهاد حالونه

(۳۱۲)

درد د غم دې بې هوش هسې کړم جانانه — چه خبر نهٔ یم له ځانه نه له جهانه
چه همیش یم د رقیب د پاره دښې نی — دلربا کړې خدا ئې له دې کاره پښیمانه
تکه باز په منګل زړکه واخلی د روهی — دغه هسې دلبر زړهٔ یوړه له ما نه

ا. [illegible]

